| | | |
|---|---|---|
| ورکړي چې حضرت محمدﷺ د ژوند او سیرت پــه اړه څو کرښې ولیکي او د پښتو لوست په بل ساعت کې یې د ټولګي په وړاندې ولولي. | | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | ۱ــ اسلام په لغت کې تسلیمېدلو یا غاړه ایــښودلو تــه وایي.<br>۲– د مسلمانانو دین .<br>۳–پیغمبر: رسول، استازی . هغه څوک چې خدایﷻ د انسانانو د لارښوونې لپاره رالیږلی وي .<br>شخصیت: سرېتوب، هغه عالي صفات دي چې شخص له یوه عضوي فردیت څخه فرق کوي . (پښتو تــشریحي قاموس). | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | د متن د پنځم فعالیت ځواب : حضرت محمدﷺ په داســې وخت کې په پیغمبرۍ مبعوث شو چې د جهالت او نــاپوهۍ توره تیاره په نړۍ کې خپره وه . حضرت محمدﷺ بشریت ته د دین او دنیا د روښنايۍ لپاره زیری راوړ.<br>ښاغلی ښوونکی دې د وخت او د زده کوونکو د شمېر په پام کې لرلو سره د لوست فعالیتونه په زده کوونکـــو باندې سرته ورسوي .که په ټولګي کې د زده کوونکـــو شمېر زیات وي .هر فعالیت دې په څو تنو زده کوونکو باندې په وار سرته ورسول شي. | |

## اضافي معلومات

حضرت محمدﷺ د خدایﷻ محبوب پیغمبر د دوشنبې د ورځې په سهار د مکې د بني هاشم په قبیله کې وزیږید. په دې ورځ داسې پېښې شوي دي چې د بعثت زېرى يې ورکاوه، لکه: د کسرى د ماڼۍ برجونه پرېوتل، د مجوسیانو هغه اور چې دوی يې عبادت کاوه، نابېره مړ شو، ساوه بحیره وچه او په چاپېریال کې يې جوړې کلیساوي ونړېدې.

له پیدایښت څخه درې میاشتې مخکې يې پلار (عبدالله) په حق ورسېد.

له پیدایښت وروسته یې نېکه په ډېره مینه په غیږ کې واخیست ،کعبې شریفې ته يې يووړ او نوم يې پــرې محمــد کېښود. له ولادت څخه وروسته د بي بي حلیمې سعدې په پالنه کې و، بیا هغې خپلې مورته یعنې بي بي آمنې تــه وسپاره. تر شپږ کلنۍ پورې يې سر پرستي د مور پر غاړه وه. کله چې يې مور مړه شوه، بیا يې نیکه عبــدالمطلب پالنه او سرپرستي کوله . د اتوکالو، دوومیاشتو او لسو ورځو و چې نیکه يې هم وفات شو او بیا يې پالنه د کاکـــا ابوطالب پر غاړه شوه . نیکه او تره دواړو يې په خو را مینه او ښتینولۍ پالنه او روزنه کوله . کله چې (۲۵) کلن شو، له بي بي خدیجې سره يې واده وکړ. د پنځه دیرشو کالو و چې د قریشو د قبیلو ترمنځ د کعبې شریفې په بیــا جوړولو کې د حجرالاسود د ایښودلو پر سرمخالفت رامنځ ته شو. هر چا کوښښ کاوه چې دا افتخار ځـــان تــه وګټي،څو ورځې دا جنجال اوږد شو. په پای کې حضرت رسولﷺ د دوی ترمنځ داسې پریکړه وکړه چې د جنجال کوونکو قومونو یو، یو مشر يې راوغوښت، حجرالاسود يې په څادرکې کېښود . د هر قوم مشرانو د څادر یوه، یوه څنډه ونیوه، کله چې دایښودلو ځای ته پورته کړی شو، نو بیا حضرت محمدﷺ حجرالاسو د په خپلــو مبــارکو لاسونو واخیست او پر ځای يې کېښود، په دې ترتیب دغه لویه شخړه پای ته ورسیده .

کله چې څلویښت کلن شو، د حرا په غار کې چې له مکې مکرمې څخه درې کیلو متره لیرې دی، د لوی خدایﷻ له خوا په پیغمبرۍ مبعوث شو. دو حیې د پیل باوري وخت د روژې د میاشتې د يو وېشتمې نېټې د دوشنبې د ورځې شپه ده .

حضرت رسول اکرم محمدﷺ په داسې حالاتو کې په پیغمبرۍ مبعوث شو چې د نړۍ پرمخ د کفر، ظلم، وحشت، شرک او بت پرستۍ توره تیاره خپره وه. د خدایﷻ د عبادت پر ځای د لمر، سپوږمۍ، اور، پر خپل لاس جـــوړ شوو شیانو، لکه : د لرګي، ډبرې، ختې او نورو شیانو عبادت به يې کاوه، حرام او حلال پکې معلوم نه وو.

که په کوم کور کې به لور پیدا شوه ،هغه به يې په ډېره بې رحمۍ ژوندۍ ښخوله .

له دې او دې ته ورته په سلګونو نورو بې لاریو او ناروا‌وو څخه د خلکو د خلاصون او نجات په خـــاطر او ټـــول بشریت ته د سمې او حقې لارې د ښوونې په منظور مهربان خدایﷻ خپل ګران پیغمبر محمدﷺ راواستاوه چې د ځمکې پرمخ ټولو اوسېدونکو ته سمه لاره وښيي، حقیقي برحق معبود ور وښيي، د دنیا او اخرت د ســـمولو لارې چارې وروښيي چې د دواړو جهانونو نېک بختي يې په نصیب شي .

حضرت محمدﷺ د خدایﷻ وروستنی او هغه رښتینی پیغمبر دی چې لوی خدایﷻ ورته د نېکو او غورو اخلاقو لرونکی ویلی دی او هم يې د ده د رښتینولۍ په هکله فرمایلي دي: (هیڅ خبره د هوا او هوس له مخې نه کوي، مګر هغه څه وايي چې ورته وحې کیږي.)

نوټ: په دې هکله: احادیث ډېر زیات دي، خو موږ لاندې مبارک حدیث د بېلګې په توګه را اخلو چې رسولﷺ فرمايي: آیا تاسو بخیل پیژنئ؟ صحابه وو وویل نه. رسول اللهﷺ وفرمایل: بخیل هغه دی چې زما نوم واوري او درود، ونه وايي.

# دریم لوست

## د تدریس وخت : ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | له هیواد سره مینه | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | – زده کوونکي د لوست جملې سمې ولیکلی او ولوستلی شي،<br>– زده کوونکي د خپل هیواد د ازادۍ او ابادۍ په ارزښت وپوهیږي،<br>– زده کوونکي خپل هیواد ته د خدمت په اړه فکر وکړی شي،<br>– زده کوونکي په لوست کې راغلي نوي لغتونه په جملو کې وکارولی شي. | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستند وی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر اودهیوادنقشه | |
| ۵– د ارزونې لارې | شفاهي، سوال او ځواب، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶– د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ۶ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته لیوال او چمتو شي:<br>– خلک ولې له خپل هیواد سره مینه لري؟<br>– هر چا ته خپل وطن کشمیر دی، دا متل څه معنا لري؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښاغلی ښوونکی دې له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تېراونوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي او د لوست عنوان دې پر تخته ولیکي. | - زده کوونکي دې غوږ ونیسي او تختې ته دې ځېر شي. | ۳۵ دقیقې |
| - ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي . | - زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي او د ښوونکي له خوا دې د لوست دمتن سم تلفظ ته ځیر شي. | |
| - څو تنه زده کوونکي دې وهڅول شي چې په وار سره د نوي لوست متن په لوړ او مناسب اواز سره ولولي، په لوستلو کې دې بې زړه زده کوونکو ته هم ونډه ورکړل شي. | - هغه زده کوونکي چې د ښوونکي له خوا ورته د لوست د متن د لوستلو بلنه ورکول کیږي، په خپل وار سره دې د کتاب له مخې متن په سم تلفظ ولولي او نوردې ورته غوږ و نیسي او خپلو کتابونو ته دې متوجه شي . | |
| - څو زده کوونکی دې وهڅول شي چې په وار سره د لوست په مفهوم خبرې وکړي . | - څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته په وار سره راځي او د لوست مفهوم په لنډه توګه بیانوي . | |
| - ښوونکی دې په یو زده کوونکي د کتاب له مخې د متن څو جملې ولولي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د املا په ډول ولیکي. | - زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په منظمه توګه په فعالیت کې فعاله برخه اخلي. | |
| - اوس دې یو زده کوونکی دغه لاندې جمله (هېواد پر موږ ګران دی) په تخته باندې ولیکي نور زده کوونکي دې دغه جمله په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې خپلې جملې ته انکشاف ورکړي بیا د ې څوتنه د ټولګیوالو په وړاندې ولولي. | ــ زده کوونکي دې نوموړې جملې ته پراختیا ورکړي اوبیا د ې څو تنه د ټولګي په وړاندې ووایي. | |
| - څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ودې وایي چې په راتلونکي کې به خپل هېوادته په څه ډول خدمت کوي . بیا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره له هېواد سره د مینې او د هغه د خدمت دارزښت په اړه خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي. | - زده کوونکي دې په وارسره دخپل هوډ په هکله خبرې وکړي چې وطن ته په څه ډ و ل خدمت کوي، نورزده کوونکي دې غوږ ونیسي . | |
| - څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د لوست یو یو لغت ووایي بل تن دې یې معنا په تخته ولیکي او بل | - زده کوونکي لغتونه معنا کوي اوبیا یې په جملو کې کاروي . | |

| | | |
|---|---|---|
| زده کوونکی دې ورڅخه جمله جوړه کړي او پر تخته دې یې ولیکي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي . | | |
| - ټول زده کوونکي دې د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي. پنځه پنځه صفتونه دې پکې په نښه کړي، هغه دې په خپلو کتابچو کې په مناسبو جملو کې وکاروي . او بیا دې د ټولګیوالو په وړاندې ولولي .که یې تیروتنې کړې وي ښوونکی دې یې ورته اصلاح کړي . | - زده کونکي د نوي لوست متن په چوپتیا سره لولي. هر یو پکې په خپله خوښه پنځه صفتونه په نښه کوي . بیا یې په خپلو کتابچو کې په مناسبو جملوکې کار وي او په وار سره یې د ټولګې په مخ کې لولي. | |
| - زده کوونکی دې په ډلو وویشل شي، د اووم فعالیت د پوښتنو د ځوابونو په اړه دې سره خبرې اترې وکړي او بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو تن د یوې پوښتنې ځواب د ټولګیوالو په مخکې ولولي. | - زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونو سره سم ډله ییز فعالیت سرته ورسوي، د فعالیتونو په سرته رسولو کې دې ټول زده کوونکي فعاله برخه واخلي. | |
| - زده کوونکی دې په ډلو وویشل شي له هرې ډلې څخه دې څو تنه زده کوونکي په وار سره یوه یوه جمله ولولي.د بلې ډلې یو زده کونکی دې هغه جمله په منفي او د بلې ډلې زده کوونکی دې یې پرسوالیه جمله بدله کړي . | - زده کوونکي جملې په مختلفوزمانوکې استعمالوي . | |
| - ښوونکی دې څو تنه زده کوونکي په وار سره وهڅوي چې یوه یوه جمله له خپله ځانه ووایي، بیا دې یې یو بل تن زده کوونکی په بله زمانه کې تکرار کړي او بل تن یې دې په بله زمانه کې وکاروي . | -زده کوونکي دې په ډله ییز فعالیت کې برخه واخلي. | |
| - زده کوونکو ته دې لارښوونه وشي چې د نهم فعالیت جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې خالې ځایونه په مناسبو جملو سره ډک کړي . | - زده کوونکي نهم فعالیت سر ته رسوي. | |
| - ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي . | - زده کوونکي غوږ نیسي اوپوښتنوته ځواب ورکوي. | |
| - ښوونکی دې د څو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه وکړي . | | |
| - ښوونکی دې د کتاب کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل درسي ساعت کې یې له ځانه سره راوړي . | - زده کوونکي کورنۍ ندده یادابنت کوي . | |

| | |
|---|---|
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | خپله خاوره به په خپلو وینو پالم<br>که حاجت یې قرباني زما د تن شي<br>په پورته شعر کې وایي چې د خپلې خاورې خدمت او پالنه به دخپلو وینو په بیه کوم.<br>ان تر دې که د هېواد ازادۍ او پالنې لپاره زما دسر او مال قربانۍ ته هم اړتیا پیښه شي ، نو زه به یې دریغ نکړم. |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | صفتونه ، لکه : شنې باغچې، سمسور باغ، رڼې اوبه .<br>خوږې اوبه<br>یوه جمله په دریو زمانو کې کارول ،لکه :<br>زه کورته ځم – زه کورته تللی وم<br>زه اوس کورته ځم – زه به کورته لاړ شم |

## اضافي معلومات

زموږ هېواد افغانستان د نړۍ په ویش کې د اسیا په لویه وچه کې پروت دی چې تر پنځو زرو کلونو زیات تاریخي لرغونتوب لري .د مرکزي اسیا په هغو هیوادونو کې دی چې له ډیر پخوا څخه یې خپل سیاسي هویت ساتلی دی.

زموږ هېواد د اسیا په زړه کې ځای لري چې له څلورو خواوو څخه په وچه پورې نښتی دی او ۶۵۲۲۲۵ کیلو متره مربع پراخوالی لري .

د تاریخ په اوږدو کې افغان واحد ملت د خپل هېواد دفاع کړې ده.

زموږ هېواد پرتهولو افغانانو ګران دی او د هېواد له ساتلو او ابادولو سره مینه لري . لکه همیش خلیل چې وایي:

موتې خاوره د وطن به پرې ورنه کړم
که په سر د ځمکې هر وطن ختن شي
د اوبو په ځای به وینې د زړه ورکړم
که محتـــاجه طراوت ته دا چمن شي
خپله خـــــاوره به په خپلو وینو پالم
که حـــاجت یې قرباني زما د تن شي
که غلیم له مابری یـــــووړ محبوبې
ستـــا پرونی دې زما دتن کفن شي

زموږ هېواد یو غرنی هېواد دی، ډېر غرونه لري چې د نورستان، کونړ او پکتیا غرونه یې په واورو او ځنګلونو پټ دي.

زموږ په هیواد کې زیات معدنونه شته.

زموږ په هیواد کې د ډېروسکرو، طبیعي ګاز، پطرولو، مالګې، اوسپنې، لاجوردو، مسو، طلا اونوروکانونه او ځمکنۍ زیر مې شته دي . اوس چې په هېواد کې ارامي راتلونکې ده ،هیله ده چې استفاده ورنه وشي .

زموږ په هېواد کې اوبه ډېرې او د هېواد په ځینو سیندونو باندې د برېښنا بندونه جوړ شوي دي او که زیات شي، ټول افغانستان ته برېښنا او اوبه ورکولی شي.

زموږ په هېواد کې له مالدارۍ پرته د میوه لرونکو او بې میوو ونو ځنګلونه شته چې چارمغز او پسته یې ډېرمشهور دي .

زموږ په هېواد کې غنم، وربشې، جوار، شولې، لبلبو، ګنې او ډول ډول میوې کیږي او په هېواد کې بېلابېله اب وهوا ددې سبب شوې ده چې هر راز ونې حاصلات او میوې په کې کیږي .

افغانستان له فرهنګي او کلتوري خوا څخه په نړۍ کې ډېر شهرت لري او همدا وجه ده چې زموږ افغانانو د تاریخ په اوږدو کې ډیر اثار لیکلي چې د بهرنیو تاړاکونو او پخپله زموږ د ځینو خلکو د نه پاملرنې له امله له منځه وړل شوي دي چې اوس ډیر کم اثار زموږ په واک کې موجود دي .

ماخذونه


۱. د افغانستان اقتصادي جغرافیه :— پوهاند محد ظریف تنیوال

۲. اختصاری از جغرافیای عمومی افغانستان:— پوهاند محب االرحمن چاپ ۱۹۹۹

# خلورم لوست

## د تدریس وخت : ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۱– د لوست موضوع | د ښځو حقونه | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | – د متن سم لوستل او لیکل وکړای شي،<br>– د ښځو د حقوقو په اړه پوه شي،<br>– د ښځو د حقونو په برخه کې خبرې وکړي او د حقونو ورکړې ته بې قائل شي،<br>– د ښځو حقوقو ته عملا کاروکړي شي. | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، قلم، کتابچه او تخته پاک | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقیقې |
| ۷_د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې او هغو ته ورته پوښتنې په شفاهي ډول له زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي:<br>– ایا تاسو کله د ښځو د حقونو په اړه څه اوریدلي دي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| – ښاغلی ښوونکی دې له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تېر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي او د لوست عنوان دې پر تخته ولیکي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي .<br>– زده کوونکي دې وهڅول شي چې د نوي لوست دمتن یو یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز ولولي .<br>– څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راوبلل شي او د لوست د مفهوم په اړه دې خبرې وکړي .<br>– ښوونکی دې د لوست لغتونه د هغوی له معناګانو سره پرتخته ولیکي او بیا دې زده کوونکي وهڅوي چې په خپلو کتابچو کې یې ولیکي او په مناسبو جملو کې یې وکاروي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکي په څلورکسیزو ډلو وویشي چې په خپلو منځونو کې د ښځو د حقونو په اړه سره بحث وکړي . خپل ګډ نظردې پر یو پاڼه کاغذکې ولیکي او بیا دې د هر ګروپ په استازیتوب یو زده کوونکی د ټولګي په مخکې ولولي. په لوستلو کې دې بې زړه زده کوونکو ته زیاته ونډه ورکړل شي.<br>– ښوونکی دې د پنځم فعالیت پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي او د هرې پوښتنې ځواب دې له دریو یا څلورو زده کوونکو څخه وغواړي چې هر یو خپل خپل نظر په جلا جلا ډول څرګند کړي .<br>– زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي . یوه ډله دې د هغو حقونو لیست چې د اسلام مقدس | – زده کوونکي دې غوږ ونیسي او تختې ته دې ځیر شي.<br>– زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا د لوست تلفظ ته غوږ ونیسي او خپلو کتابونو ته دې ځیر شي.<br>– څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د نوي لوست یو، یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز سره ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>– څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د لوست د مفهوم په هکله خپل نظر څرګند کړي .<br>– زده کوونکي دې پرتخته باندې لیکل شوي لغتونه له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبو جملو کې دې یې وکاروي .<br>– زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم ډله ییز فعالیت سرته ورسوي .<br>– زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره | ۳۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| دین ښځو ته ورکړي ،جوړ کړي . بله ډله دې د هغو حقونو لست چې د بشر د حقونو په نړیواله اعلامیه کې یې یادونه شوې ده ،جوړ کړي، بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو یو تن خپل لیکل شوي لیستونه ولولي. نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>– ښوونکی دې د اووم فعالیت پنځه کلمې پر تخته ولیکي او نورزده کوونکې دې وهڅوي چې د دې کلمو متضادې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبو جملو کې یې وکاروي.<br>– ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي.<br>– ښوونکی دې د څو لنډو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه وکړي.<br>– ښوونکی دې د کتاب کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل درسي ساعت کې یې له ځانه سره راوړي . | سم ډله ییز فعالیت سرته ورسوي او ټول زده کوونکي دې فعاله ونډه واخلي.<br>ـ زده کوونکي دې په ډلییز فعالیت کې برخه واخلي .<br>– زده کوونکي دې پر تخته باندې د لیکلو کلمو متضادې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبوجملو کې دې وکاروي .<br>ـ زده کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي .<br>ـ زده کوونکي دې ځوابونه واویي .<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي اوپه کورکې ورباندې کار کوي. | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | د پنځم فعالیت د وروستۍ پوښتنې د ځواب په اړه باید ووایو چې په ځینو سیمو او ټولنو کې ښځو ته ځکه خپل حقونه پوره نه ورکول کیږي چې هغوی د ښځو د حقونو په باب پوره معلومات نه لري. | |

## اضافي معلومات

د تاریخ په اوږدو کې تل د حق خوړونکو او حق اخیستونکو ترمنځ په اوږدو علمي بحثونو، څېړنو، غوښتنو اولا ریونونو د تاریخ پاڼې ډکې شوې دي او په نتیجه کې همیشه حق پر باطل بریالی شوی دی .

د تاریخ په اوږدو کې تل د حق د لاسته راوړلو، عدالت رامنځته کولو او د محرومو ولسونود ازادۍ لپاره مبارزې شوې دي او مثبتې پایلې یې لرلې دي .

په دغو تاریخي مبارزو کې یوه هم د ښځو د حقونو د لاسته راوړلو مبارزه ده . د ښځو د حقوقو د لاسته راوړلو مبارزه او دغې مبارزې ته هڅونه له هغه وخت څخه راپیل شوې چې د پرمختللي ټولنیز ژوندانه پر لور د حرکت په بهیر کې له خپلو رواحقونو څخه ښځې بې برخې شوې وې او چا ورته په درنه سترګه نه کتل.

که څه هم ښځو د بشر د تاریخ په اوږدو کې له نارینه وو سره د ژوندانه په بېلابېلو برخو کې د هغه وخت په شـــرایطو کې یو ځای کار کړی دی ،خو هغه ګډ کار په اصل کې د نارینه وو له اوږ وڅخه د بارد سپکولو په خاطر و او په هغو وختونو کې ښځې تر داسې ظلمونو لاندې وې چې د رانده جسمي کارونه د دوی له فزیکي توان څخه وتلې خبره وه .تر ۱۸ مې پیړۍ پورې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې ښځې د هر هېواد د شرایطو په دننه کې تر زیات فشار لاندې وې.

که څه هم د خپلو حقوقو د لاسته راوړلو لپاره یې تل مبارزه کړې ده ،خو له ستونزو سره هم مخ شوې دي . د ۱۸۷۵م کال د مارچ پراتمه (۸) نېټه د هغه وخت په امریکا کې ښځو د هغه وخت په واکمنۍ کې د خپلو حقوقو د لاسته راوړلو لپاره مظاهره وکړه ،خو د هغوی حقوق په ټوپکو او ډزو سره ورکړل شول . دغه حالت د نړۍ ښځو ته ټکان ورکـــړ، دغه دیکتاتورانه حرکت د یو شمېر هېوادونو ښځې دې ته وهڅولې چې سره متحدې شي او د خپلو حقونـــو د لاســـته راوړلو لپاره مبارزه لا تیزه کړي .

په ۱۹۱۰ کال کې د ښځو د زیاتې مبارزې په اثر د مارچ اتمه د ښځو د نړیوالې ورځې په توګه ومنل شوه .

له هغه تاریخ وروسته ورو ورو د نړیوالو په وړاندې د ښځو د حقوقو ورکړه ثابته شوه او ورباندې قانع شول او د هـــر کال په تېریدو سره دغه لمانځنه پراخه شوه .

ښځو وغوښتل چې باید په خپلو هېوادونو کې د ښځو په وړاندې د هر ډول توپیر د له منځه وړلو او د ټولنې د ژوندانه په بېلابېلو برخو کې له نارینه ووسره د برابرۍحقوق ترلاسه کړي . دغه مبارزه په بېلابېلو هېوادونو کې توپیر لري او د حقوقو ورکړه یې هم سره توپیر لري . کله چې موږ په ټولنه کې د ښځو د حقوقو په اړه خبرې کوو، باید ووایو چې څه ډول ټولنه؟

په نړۍ کې داسې ټولنې نشته چې ښځو ته د حقونو د ورکړې ترڅنګ د هغو حقوق تر پښولاندې نه کړي .

دا د ټولنې د اساسي قانون د نده ده چې ښځوته خپل روا حقوق ورکړي او ددې لپاره بایدښځې اونارینه په ګډه هلې ځلې وکړي .

نن سبا چې موږ د کومو پر مختللو ټولنو نوم اخلو چې ګڼې هغوی ښځو ته حقوق ورکړي دي بیا هم په هغو کې ښځې د لانورو تلف شوو حقونو د لاسته راوړلو لپاره مبارزه کوي، خو په ټولنه کې د مثبتو بدلونونو په رامنځته کیدلو ســـره د ښځو د حقونو په ورکړه کې بدلونونه راتلای شي .

زموږ په هېواد کې ښځو ته حقوق ورکړل شوي دي چې له نارینه ووسره یو ځای د ټولنې په ټولو کارونو کې د خپـــل فزیکي توان په کچه اودغه رازپه دولتي ادارو کې کاروکړي .په سیاسي ګوندونو، پارلمان او د دولت په لوړو څوکیـــو کې د کار کولو اجازه و لري .

زمور په هیواد کې د غازي امان الله خان په وخت کې ښځو ته ازادي او حقوق ورکړل شول چې په سیاسي او اجتماعي مسایلو کې ګډون وکړي، د هغه وخت د اساسي قانون په جوړولو کې ښځو ګډون وکړ او په ښوونځیو کې د زده کړې اجازه ورکړل شوه .

په ۱۳۵۷ کال کې د لومړی ځل لپاره د افغانستان ښځو د اسیایي هېوادونو د ښځو په کنفرانس کې ګډون وکړ چې په سریلانکا کې جوړ شوی و. همدا اوس زموږ په دولتي ادارو ، پارلمان او کابینه کې ښـــځې موجـــودې دي اوس پـــه ښوونځیوکې $\frac{1}{3}$ برخې زده کوونکي نجونې دي .

د اسلام دین د جنس د توپیر مخالف دی ،خو که چیرې په ربښتیني توګه ځوک په اسلام کې د ښځو د حقوقو په هکله ځیړنې وکړي، په ټولنیزو او سیاسي چارو کې د ښځو نظر ته پوره درناوی شوی دی. مثلا کله چې مسلمانان د دویم ځل لپاره مدینې منورې ته ننوتل .په هغوی کې ښځې هم وې، دغه رازپه لومړی ځل په اسلام کې ښځو ته د سیاســـي ازادۍ حق ورکړل شوی دی . اسلام ښځې له انتخاب کولو او انتخاب کېدو څخه نه منع کوي . زموږ د اساسي قـــانون ۳۵ ماده هم وایي چې د افغانستان اتباع نارینه او ښځې سیاسي احزاب جوړولی شي . دا هغه قانون دی چـــې د افغانـــستان ددیني علماوو په حضور کې د افغانستان د خلکو د استازو له خوا تصویب شوی دی . دغه راز د افغانستان ټول خلک او دغه راز ځوانان هم باید د ښځو د حقوقو پر ارزښت پوه شي او د ټولنې په متوازنه وده کې د دغو حقوقو د رعایت په اغیز منتوب باوري شي.

دا لازمه ده چې ځوانان په دې پوه شي چې دغو حقوقو ته په خپله کورنۍ کې، په خپل کلي او سیمه کـــې، پـــه خپـــل شاوخوا کې توجه وکړي او نوروته یې هم پر عملي کولو ټینګار وکړي . ځوانان باید په دې ټکو وپوهول شي چې لـــه ښځو پرته ټولنه نیمګړې ده، بشریت نیمګړی دی او دهغوی له ونډې پرته د ټولنې او هېواد وده ناشونې ده. د ښځو د حق د لاسته راوړلو لپاره باید ښځې او نارینه په ګډه هلې ځلې وکړي .

د ښځو د حقوقو په برخه کې اخځونه:

۱. میرمنومجله، ۱۲ ګڼه، ۱۳۴۷ کال.

۲. میرمنو مجله، ۳ ګڼه، ۱۳٦۲ کال.

۳. د بشر د حقوقو نړیواله اعلامیه ۱۳۸۴ کال.

۴. جندر او حقوق بشر، ۱۳۸۴ کال.

۵. قانون اساسي ۱۳۸۴ د عدلیې وزارت .

# پنځم لوست

## د تدریس وخت : ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | فعل د جملې مهمه برخه | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | – زده کوونکي فعل او ډولو نه یې وپېژني،<br>– فعلونه په جملو کې وکارولی شي،<br>– په جمله کې د فعل د سم او په خپل ځای کارولو په ارزښت وپوهېږي،<br>– په لیکلو او لوستلو کې فعل په سمه توګه وکارولی شي. | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، لیکل، په چوپتیا سره لوستل، یو کسیزکار، ډله ییزکار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، تباشیر، تخته، د امکان په صورت کې د فعلونو یو چارت، کارتونه | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶– د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ۶ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې او هغو ته ورته پوښتنې په شفاهي ډول له زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي:<br>که چېرې په یوه جمله کې فعل رانه وړل شي، څه ستونزې به رامنځته شي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک په تخته ولیکي، بیا دې د لوست متن په لوړ او مناسب اواز سره ولولي. | - زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته متوجه شي. | ۳۵ دقیقې |
| - زده کوونکي دې وهڅول شي چې د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي ستونز من ځایونه پکې په نښه کړي . | - زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي، د ستونزمنو برخو په هکله دې له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي . | |
| - څو تنه زده کوونکي دې وهڅول شي چې په وار سره د لوست متن په لوړ او مناسب اواز اوپه سم تلفظ سره ولولي، نور زده کوونکي دې سم تلفظ ته ځیر او خپلې ستونزې دې حل کړي . | – څوتنه زده کوونکي دې متن په لوړاواز ووايي اونورزده کوونکي دې غوږ ونیسي | |
| - زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي .د یوې ډلې یو زده کوونکی دې د یوه فعل نوم<br>و اخلي او د بلې ډلې یو زده کوونکي دې هغه فعل په شفاهي ډول په زمانه کې په جمله کې وکاروي . دا فعالیت دې په څو تنو باندې سرته ورسوي . | اوزده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم کار کوي اوپه ډله ییز فعالیت کې ونډه اخلي . | |
| - څو تنه زده کوونکي دې په وار سره وهڅول شي چې د متن د موضوع د ارزښت په هکله خبرې وکړي، بې زړه زده کوونکو ته دې هم ونډه ورکړل شي، ښوونکی دې ورسره د اړتیا په صورت کې مرسته کوي . | _ زده کوونکي دې د متن د موضوع د ارزښت په هکله په وار سره خپل نظر څرګند کړي . | |
| - د یوې ډلې څو تنه زده کوونکي دې په خپل وار سره د یو، یو لازمي فعل نوم واخلي او د بلې ډلې یو، یو زده کوونکی دې په وار سره پر تخته باندې ولیکي . په مناسبو جملو کې دې یې وکاروي . او بیا دې د مقابلې ډلې څو تنه زده کوونکي په وار سره د یوه، یوه متعدي فعل نوم واخلي او د بلې ډلې زده کوونکي دې په مناسبو جملو کې وکاروي . | - زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم په ډلو کې فعالیت سرته رسوي . | |
| - ښوونکی دې زده کوونکي وګوماري چې په خپله خوښه د زمانې په لحاظ څو فعلونه په خپلو کتابچو کې ولیکي ،بیا دې یې په وار سره د ټولګیوالو په مخ کې ولولي. د جملو د لوستلو لپاره د زده کوونکو په انتخاب کې دې قوي او ضعیف ټول په پام کې ونیول شي . | زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم کار کوي . | |
| - ښوونکی دې نور څو تنه زده کوونکي وهڅوي چې په خپل وار سره د پنځم فعالیت یوې، یوې پوښتنې ته ځواب ووایي . | زده کوونکي پنځم فعالیت سرته ورسوي . | |

<table>
<tr>
<td>د اړتيا په صورت کې دې ښوونکی ورسره مرسته کوي .<br>– ښوونکی دې ټولو زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د کتاب د لوست د شپږم فعاليت ناسمې جملې په خپلو کتابچو کې په سمه بڼه سره وليکي او بيا دې څو تنه خپلې جملې په وار سره په لوړ او مناسب اواز سره ولولي، نور زده کوونکي دې خپلې جملې ورسره پرتله کړي که يې تيروتنې کړې وي هغه دې اصلاح کړي .<br>– زده کوونکي دې وهڅول شي چې په خپلو کتابچو کې داسې جملې وليکي چې يو فعل پکې په بېلو، بېلو زمانو کې کارول شوی وي، بيا دې څو تنه خپلې جملې په وار سره په لوړ او مناسب اواز سره په ټولګي کې ولولي .<br>– يو زده کوونکی دې وګومارل شي چې يو فعل په تخته باندې په يوه زمانه کې وکاروي . څو نور زده کوونکي دې دغه فعل په وار سره په بله زمانه کې د تختې له پاسه وکاروي .<br>– يو زده کوونکی دې د معنا له مخې يو فعل په تخته باندې وليکي، بل دې په جمله کې وکاروي . دا کار دې څو تنه تکرار کړي .<br>– يو زده کوونکی دې وهڅول شي چې په سم خط څو لنډې جملې په تخته وليکي ،بيا دې د ټولګې زده کوونکي په دوو ډلو وويشل شي، يوه ډله دې دغه جملې په منفي جملو او بله ډله دې هغه په سواليه جملو واړوي، بيا دې څو تنه په وار سره خپلې جملې د ټولګي په مخ کې ولولي. ښوونکی دې تيروتنې اصلاح کړي .<br>– ښوونکی دې له لنډيز، ارزونې وروسته کورنۍ دنده ورکړي.</td>
<td>– زده کوونکي فعاليت سرته رسوي .<br>– ټول زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې سمې جملې وليکي او بيا دې څو تنه په وار سره خپلې جملې د ټولګي په مخ کې ولولي.<br>– زده کوونکي له لارښوونې سره فعاليت سر ته رسوي.<br>– زده کوونکي دې ليکل شوی فعل په خپله خوښه په هره زمانه کې چې کولای شي، په جملو کې وکاروي .<br>– زده کوونکي کورنۍ دنده سره ته رسوي.</td>
<td></td>
</tr>
<tr>
<td>– د متن د ستونزمنو برخو روښانول<br>– د فعاليتونوپه اړه معلومات اوپوښتنو ته ځوابونه</td>
<td colspan="2">فاعل : هغه څوک دی چې يو کار يې سرته رسولی وي، يا يې سر ته رسوي .<br>مفعول : هغه څوک يا څو تنه چې يوکار ورباندې سرته رسيدلی وي .<br>ماضي :تير<br>مستقبل : راتلونکی<br>ښاغلی ښوونکی دې د وخت او زده کوونکو د شمېر په پام کې نيولو سره د لوست فعاليتونه سرته ورسوي .<br>– د وخت د موجوديت په صورت کې دې ښوونکی په خپله خوښه ځينې فعاليتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي.</td>
</tr>
</table>

## اضافي معلومات

**فعل:**

فعل د وينا د يو عمده جز په توګه په يوه زمانه کې د کار په کولو او يا د يوې پېښې په پېښېدو دلالت کوي . يا په بل عبارت فعل هغه کلمې ته وايي چې په يوه زمانه کې د يو کار او پېښې په کېدو دلالت کوي . لکه احمد خط ليکي. احمد به کور ته لاړشي. زرمينې خط وليکه . فعل پراخ مفهوم لري او بېلابېل موضوعات په خپله ځولۍ کې رانغاړي .

څرنګه چې يو فعل په يوه زمانه کې د کار او پېښې په پېښېدو دلالت کوي، په ټاکلي شخص او ټاکلې زمانې پورې اړه لري . فعل ځانګړې ريښې لري . همدارنګه فعل د اشتقاق ځانګړي صورتونه او وجه لري : فعل د وينا مهم او عمده جز تشکيلوي چې له فعل څخه پرته جمله نيمګړې بلل کيږي .

فعل ډېر ډولونه لري ،دلته يې ځينې درپيژنو.

لومړی- د معنا له مخې د فعل ډولونه :

د فعل معنوي اړخ (لازمي او متعدي)

په پښتو ژبه کې فعل د معنا له پلوه په لازمي او متعدي ويشل کيږي .

الف- لازمي فعل: هغه فعل ته وايي چې مفعول نه قبلوي او فعل په تيره او ناتيره زمانه کې د جملې د فاعل لپـــاره کـــارول کيږي . يا دا چې فعل په تيره زمانه کې د جملې د فاعل سره مطابقت ښيي چې البته دغه مطابقت په ناتيره زمانه کې د لومړي او دويم شخص په مورد کې د شخص او عدد له پلوه او د دريم شخص په باره کې د شخص او عددله پلوه اود دريم شخص په باره کې يوازې د شخص له پلوه فعل د فاعل لپاره کارول کيږي . په مهال کې لازمي فعل د لومړي او دويم شخص پـــه مورد کې د شخص او عدد له پلوه د جملې د فاعل لپاره کارول کيږي ،خوددويم شخص په مورد کې سربيره پر شخص او عدد د جنس له پلوه هم له فعل سره سمون ښيي.

ب: متعدي فعل: متعدي فعل هغه فعل ته وايي چې مفعول قبلوي او فعل په تيره زمانه کې د جملې د مفعـــول لپـــاره اوړون مومي، البته دغه اوښتون د شخص، عدد او جنس له پلوه تر سره کيږي .لاندې مثالونو ته پاملرنه وکړئ.

تيره زمانه :

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | احمد زه ووهلم . | احمد موږ ووهلو. |
| ۲ | احمد ته ووهلې . | احمد تاسې ووهلئ . |
| ۳ | احمد دی وواهه . | احمد دوی (مذکر) وواهه . |
| ۴ | احمد دا وو هله . | احمد دوی (مونث) وو هلې. |

په پورتنيو مثالونو کې چې د فعل مفعول لومړی او دريم شخص مفرد وي، فعلي روستاړی د (ام )او کله چې د فعل مفعول/ موږ او تاسې/ جمع وي فعلي رو ستاړی د (و-ئ) په بڼه ظاهر شوی دی. ځکه په فعلونو کې د مفرد او جمع بڼې د څرګنديدو لپاره مشخص او ټاکلي مورفيمونه نشته، بلکې هماغه د شخص تعريفي روستاړي دي چې د مفرد او جمعې شکلونه هم ښکاره کوي .

د دريم شخص په برخه کې په تيره زمانه کې د جنس مساله هم رابرسېره کيږي ،لکه چې په پورتنيو مثالونو کې وينو کله چې د فعل مفعول دريم شخص /دی-دا/ مفرد مذکر او مفرد مونث دی فعلي روستاړي د (د-له)په بڼه همدارنګه هلته چې د فعل مفعول (دوی)جمع مذکر او جمع مونث دی، فعلي روستاړي د (ال/ ې)په بڼه ،څرګند شوي دي، نو په نتيجه کې ويلی شو چې د دريم شخص په مورد کې فعل په تيره زمانه کې د مفعول لپاره کارول کيږي .

## د فعل زمانه:

یو فعل د مهال (زمان) له پلوه په درې ډوله دی ،یا په بل عبارت د یوې پېښې پېښېدل او یا د یو حالت واقع کیدل په دریو زمانو پورې اړه لري :

تېر مهال : د وینایا د یو فعل له پیښېدو څخه پخوا زمانه .

ناتیر مهال : (حال) د وینا یا د یو فعل د پېښېدو زمانه .

راتلونکی مهال : د وینا او د پیښې د پیښیدو وروسته مهال .

## ماضي فعل او د هغه ډولونه :

ماضي فعل هغه فعل ته وايي چې د یو کار د کېدو او یا د یوې پېښې له پیښیدو څخه په تیر مهال کې بیان کوي او په لاندې ډولونو ویشل کیږي .

مطلقه ماضي:-

په پښتو ژبه کې د مطلقې ماضې رغېدنه د فعل له دویمې ریښې څخه په دوو ډولو ترسره کیږي :

الف: د /و/ د مختاړې په زیاتولو ترسره ،لکه :

ماو+اغوست/ماو-خوړ/ماو-لوست/تاو-اغوست/ده و-اغوست/

## ب -د څپې د خج په بدلون :

زه څملاستم :

زه پرېوتم .

زه کښېناستم .

په پورته مثالونو کې که چیرې فشار د فعل پر لومړۍ څپه راشي ،نو مطلقه ماضي ترې جوړیږي .

## استمراري ماضي :

چې د یوکار د کېدو او یا د یوې پیښې د پیښېدو استمرار او دوام په تیر مهال کې بیانوي . په پښتو ژبه کې د استمراري ماضي جوړښت د تېر مهال فعل له ریښې څخه په لاندې ډول ترسره کیږي :

الف : د څپې د خج په بدلون : څرنګه چې د مطلق ماضي په رغېدنه کې ولیدل شول ،که چیرې د فعل په لومړی څپه فشار یا خج راوړل شي ،مطلقه ماضي ترې جوړیږي او که چېرې خج د فعل وروستی څپې ته انتقال شي ،نو استمراري ماضي فعل ترې جوړیږي، لکه:

زه څملاستم .

زه پرېوتم .

زه کېناستم .

څرنګه چې د مطلقې ماضي په رغیدنه کې مو ولیدل چې مطلقه ماضي په متعدي فعلونو کې ( و ) د مختاړې په زیاتولوسره رغیدنه مومي ،خو په استمراري ماضي کې د ( و ) مختاړی چې د فعل له سر څخه وغورځول شي استمراري ماضي جوړیږي ، لکه :

ماکمیس اغوسته .

تا ډوډۍ خوړه .

ده لیک لیکه .
یادونه : په ځینو لازمي فعلونو کې هم د (we ) د مختاړي په ز یاتولو سره مطلقه ماضي جوړیږي ،لکه : زه ولاړم زه و+تم، ته و+وتې .
خو په ځینو فعلونو کې ، لکه : تلل د فعل د اصل په بدلون سره استمراري ماضي جوړیږي ،لکه : زه تلم . ته تلې. دی ته . داتله .
**نږدې ماضي**: نږدې ماضي د چاراو پیښې له مخې کله داسې وي چې په تیر مهال کې یو مخیز بشپړ شوې وي او یا دا چې تر اوس مهال یې څه اوږدوالی موندلی وي .
د هغه د جوړولو طریقه په لاندې ډول ده :
مفعولي صفت+ ــیم، یو، دی، یې) مرستیال فعل .
زه تللی یم. ته تللی یې. موږ تللي یو، تاسې تللي یئ. دی تللی دی . دا تللې ده . دوی تللي دي . مالیکلي دي . مالیکلې ده .
**لرې ماضي**: بعیدې ماضي ته هغه وخت ضرورت وي چې وروسته ترې بشپړ تیرمهال (مطلقه ماضي) یا د نزدې ماضي فعل واقع شوی وي .
په بل عبارت لرې ماضي یود دغو نورو ډولونو تر استعمال وروسته کارول کیږي ، لکه : ته پر لسوبجو راغلې اوزه پر نهو بجو راغلی وم . یا هغه وخت چې ته راغلې، زه راغلی وم . کله چې زه راغلم ،ملګري تللي وو. د لرې ماضي فعل ګردان او رغیدنه په لاندې ډول ده :(مفعولي صفت د / ول/ مرستیال فعل)
لکه: ماخوړلې ده.
تا خوړلې وه.
موږ لیکلی و.
دوی تللي وو.
تاسې تللي وئ .
د بعیدې ماضي مجهول شکل په لاندې ډول رغیدنه مومي:
(اصلي فعل+ شول+ ول )
زه خوړلی شوی وم .
ته وهل شوی وې .
تاسې رټل شوي وئ .
خط لیکل شوی و .
خطونه لیکل شوي وو.
احتمالي یا التزامي ما ضي :
هغه فعل ته وایي چې د هغه پیښېدل ګوماني او مشکوک وي یا په بل عبارت په تیره زمانه کې د یو کار پیښیدل په شک یا احتمال بیانوي).
په لاندې ډول جوړښت مومي (مفعولي صفت+به +ول) او هم د ګوندې اوښایي غوندې ګوماني ادات هم ورسره ملتیامومي، لکه : مابه خوړلی وي، تا به لیکلی وي، دی به تللی وي، ښایي ما به خوړلی وي .ښایي ما به لیکلی وي، ښایي ده به لیدلي وي .

**حال فعل**: په او سمهال کې د معنا له پلوه د یو عمل واقع کیدل دي . حال فعل د او سمهال له اصل څخه جوړیږي او فاعلي روستاړی د فعل په ریښه پورې نښلي .
زه لولم .
زه خورم .
زه کښینم .
زه وهم .
ته کښینې.
ته وهې .
موږ کښینو.
تاسې لولئ .
دوی لولي .
دوی خوري .
**مستقبل فعل** :
د یو کار کېدل په راتلونکې زمانه کې څرګند وي . فعل د اصل له پلوه د اوسمهال سره کوم توپیر نه لري. او په پښتو ګرامرونو کې دغه دواړه (حال او مستقبل) د ناتیرې زمانې په نامه هم نومول شوي دي ،خو د /ب/ ادات په زیاتو سره له او سمهال سره توپیر کیدای شي .
لکه : زه به وخور م–ته به وخورې .
دی به ولیکي .
دوی به ولولي .
تاسې به واغوندئ .
**یادونه** : مستقبل فعل داوسمهال له ریښې څخه د /ب/ په زیاتولو رغېدنه مومي ،خو یوازې د /تلل/ په ګردان کې د لاړ/ مطلقې ماضي د ییښې په راوړو سره د/شول/ مرستیال فعل په ملتیا ګردانیږي،لکه : زه به ولاړشم، ته به لاړ شې.
مستقبل فعل بشپړ شکلونه لري .
**بشپړ**: و به خورم، و به خورې .
**مجهول** : و به خوړل شي، و به وهل شي.
**نا بشپړ**: خورم به، خوروبه، مجهول شکل : خوړل کیږم، دریږم به .
**امر فعل** : هغه فعل ته وایي چې د یو کار په سرته رسولو امرو کړي او یا د یو کار سرته رسول د استدعا او خواهش په صورت کې وکړي . او دوه صیغې لري . مفرد او جمع، لکه : وخوره، وخورئ، وځښه، وځښئ، ولیکه ،ولیکئ، ووهله، ووهئ، ودریږه، ودریږئ .
ماخذ= پښتو غږ پوهنه او ویپوهنه
فونولوژي–مورفولوژي
پوهنوال محمد صابرخویشکی
۱۳۸۰–۲۰۰۱م کال

# شپږم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | خرقه مبارک | |
| ۲- د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | - ليکل او لوستل وکړی شي،<br>- خرقه مبارکه وپيژني،<br>- د خرقې مبارکې په هکله خبرې وکړی شي،<br>- د خرقې مبارکې په هکله پوه شي چې ولې مبارکه ده . | |
| ۳- د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار | |
| ۴- د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشير، تخته پاک | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي يادښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل | ۶ دقيقې |
| ۷- د انګيزې رامنځ ته کول . | ښوونکی دې په شفاهي ډول له څو تنو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:<br>تاسو کله د خرقې مبارکې نوم اوريدلی دی؟<br>پوهيږئ چې خرقه مبارکه به چيرې وي؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی د نوي لوست په اړه انګیزه یې پوښتنې کوي .<br>- تاسو کوم وخت د خرقې مبارکې په اړوند څه اوریدلې دي؟<br>- زده کوونکي په چوپه خوله یو ځل متن لولي ،بیا څو تنه په وار سره د متن یو یو پاراګراف لولي ، نور ورته غوږ نیسي، ښوونکی لارښونه کوي .<br>- ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د خرقې مبارکې د ځای اودراوړلو په باره کې څو کرښې ولیکي ،بیا دې نورو ټولګیوالو ته ووایي.<br>- زده کوونکي دې په څو څو ډلو وویشي چې له هرې ډلې څخه یو استازی د خرقې شریفې د ارزښت په هکله خبرې وکړي.<br>- له یو ګروپ نه دې څوکسه د فردې لیاقت په پام کې نیولو سره پورته کړي چې له بلې ډلې څخه د کتاب د فعالیتونو د ۴ شمیرې پوښتنې وکړي د بل ګروپ زده کوونکي دې ورته ځواب ورکړي .<br>- په څو ګروپونو دې د متن عام نومونه په خپلو کتابچو کې وکاروي او په څو ګروپونو دې د متن خاص نومونه په خپلو کتابچو کې وکاروي ،بیا دې د هر ګروپ په استازو ووایي او ګروپونه دې و څاري چې ټول زده کوونکی په کې برخه واخلي.<br>- په زده کوونکو باندې د ۷ فعالیت د جملو تش ځایونه په کتابچو کې ډک کړئ .<br>- څو زده کوونکی پورته کړئ چې کندهارته د خرقې مبارکې د راوړلوپه هکله خبرې و کړي .<br>- څو تنه زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړې چې خرقه شریفه موږ ته څه ارزښت لري .<br>- که وخت و، ښوونکی کولای شي چې د نورو پوهنیزې، ذهنیتي او مهارتي خواوو په هکله په زده | - زده کوونکي د ښوونکي د رناوی کوي، کورنۍ دنده ښوونکي ته ښیي او پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده کوونکي ځواب ورکوي .<br>- زده کوونکي یو ځل متن په چوپه خوله لولي اوبیا څو تنه زده کوونکي متن په لوړ اواز لولي ،نور زده کوونکي دمتن لوستلو ته غوږ نیسي .<br>- زده کوونکي په خپلوکتابچو کې د خرقې مبارکې په هکله معلومات لیکي اوبیایې نوروټولګیوالوته وایي اونور ګروپونه ورته غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي په ډلییز فعالیت کې ونډه اخلي . او استازې زده کوونکي دخرقې مبارکې په هکله خبرې کوي . نورزده کوونکي ورته غوږ نیسي .<br>- زده کوونکي دې دپوښتنو ځوابونوته متوجې وي اوځوابونه دې ووایي .<br>- زده کوونکي په خپلوکتابچوکې خاص او عام نومونه لیکي اوبیا یې د ښوونکي په لارښوونه نورو ټولګیوالوته وایي .<br>- زده کوونکي په خپلو کتابچو کې د جملو تش ځایونه ډکوي .<br>- زده کوونکي دخرقې مبارکې دارزښت په اړه خبرې کوي اونورزده کوونکي غوږ نیسي .<br>- زده کوونکي دخرقې مبارکې په ارزښت خبرې کوي اونورزده کوونکي غوږ نیسي. | ۳۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| کوونکو خبرې وکړي .<br>- ښوونکي د لوست لنډيز يو ځل زده کوونکو ته په خپله وايي .<br>- ښوونکی د څو لنډو پوښتنو په کولو سره د لوست ورکول ارزوي .<br><br>کورنۍ دنده :<br>په زده کوونکودې په خپله سيمه کې د يو داسې ځای په هکله څو کرښې وليکي چې خلک د درناوی لپاره ورځي. | - زده کوونکي په فعاليت کې ونډه اخلي .<br><br>- زده کوونکي ورته غوږ نيسي او ځواب ورکوي.<br><br><br><br>زده کوونکي کورنۍ دنده راوړي. | |

| | |
|---|---|
| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | خرقه مبارکه : دحضرت پيغمبر ﷺ چپنه ده چې حضرت محمد ﷺ اود هغه کورنۍ په خپلو لاسونو ګنډلې وه او اوس په کندهار کې ده .<br>صوفيان : په اصل کې دصوفي کلمه دصوف نه اخيستل شوي ده اوصوف په عربي ژبه کې وړيوته وايي ، نوله د ې امله صوفي به هغه چاته ويل کيده چې هغه به وړينې جامې اغوستلې ،خو صوفيان هغه چاته ويل کيږي چې هغوی دتصوفي طريقې پيرو وي .<br>امير تيمورګو رګاني:اميرتيمورګورګان دترغای زوی او دتورک له قبيلې نه و.دغه قبيله چې کله ماورانهر ته راغله ، په شهرسبز سيمه کې ځای په ځای شوه .موريې مکنه نوميد ه.کله چې ځوان شو،دپاد شاهی فکر يې په ذهن کې راوګرځيد. هغه غوښتل چې مرکزي اسيا ونيسي .۱۸۰ودونه يې کړي وو.<br>(افغانستان درمسير تاريخ لومړی او دويم ټوک ۲٦۰ مخ.)<br>ويس قرني: ويس قرني ديمن و اوپه حضرت محمد ﷺ باندې ډير ګران و اوانحضرت ﷺ وصيت کړی و چې زما له مرګ څخه وروسته دا چپن هغه ته ورکړئ .<br>سمرقند:دازبکستان لرغونۍ ښا ر دی لرغوني تاريخي اوهنري اثار لري. دتيمورګورګاني قبر هم په دې ښارکې دی .په دې ښارکې لرغوني مسجدونه، لکه: مسجدنمازګاه ،مسجد بي بي خانم،مسجدخانقاه،لرغوني مدرسې ،لکه : مدرسه الغ بيک.<br>دغه راز ددري ژبې د نامتوشاعر رودکي قبر هم د رودک په سيمه کې دی . |

| | |
|---|---|
| | سادات : دحضرت محمدﷺ اولادې ته ساد ات وايي .<br>متوليان : هغه چا چې به دحضرت محمدﷺ چپن ساتله ، هغوی ته به يې متوليان ويل .<br>**احمد شاه بابا**:احمد شا ه ابدالي دزمان خان زوی اوپه هرات کې زيږيدلی دی .کله چې نادرشاه کندهار ونيو ،احمدشاه اود هغه ورور ذوالفقار يې مازندران ته تبعيدکړل . دهغه ورور هلته مسموم اومړشواواحمد شاه چې په هغه وخت کې د احمدپه نامه ياديده. يوازې پاتې شو .۲۰کلن و چې دنادرافشار دربارته يې لاره پيدا کړه ،پوځي افسر اودافغاني لښکرو مشر شو.<br>(افغانستان درمسير تاريخ اول اودويم ټوک ۳٦۷مخ.) |
| د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | ۷ فعاليت : په لاره کې په هر پړاو کې خلک د خرقې مبارکې ليدو ته راټو ليدل . خرقه شريفه ۹مياشتې په کابل کې وه.<br>خرقه شريفه اوس داحمد شاه باباد مزار ترڅنګ ودانۍ کې خوندي ده.<br>۴ فعاليت : د خرقې مبارکې ارزښت دا دی چې حضرت محمد او دهغه ميرمنې په خپلو لاسونو ګنډلې وه او د عمر تر پايه يې اغوستې ده.<br>۲-: دا خرقه مبارکه له بدخشان څخه هند ته وړل کيده،خو د بدخشان والي پرې خبرشو، هلته يې ترينه واخيسته ، په بدخشان کې يې ورته ځای جوړ کړ او بيا يې په بدخشان کې دغه ښارته د فيض اباد نوم کيښود. |

# اضافي معلومات

خرقه شریفه د حضرت محمدﷺ چپنه ده چې د هغه د کورنۍ غړو په خپلو لاسونو ګنډلې وه او دخپل عمر په پای کې يې اغوستله .
پیغمبرﷺ د دې چپنې په هکله وصیت کړی و چې زما له مرګ څخه وروسته دغه چپنه ابي عمرو اوویس بن العامرتــه چې په ویس قرني مشهور دی ، ورکړئ، نو د هغه مبارک له مرګ څخه وروسته حضرت عمرؓ او حضرت عليؓ نوموړي ته وسپارله. په حضرت محمدﷺ باندې نوموړی ډیرګران و او هغه د یمن اوسیدونکی و. نو موړي هم دغــه مبارکه چپنه د ژوند ترپای پورې اغوستله. دهغه له مرګ څخه وروسته يې دغه چپن راوړه ،د حرا په غــار کــې يــې کېښوده.
ډېر کلونه هلته وه. بیا له هغه ځای څخه بغداد ته راوړل شوه .د عراق په بغداد کې وه ډېر کلونــه وروســته امیــر تیمورګورګان د خپلو فتوحاتو په لړ کې چې کله يې بغداد ونیو، سمرقند ته يې راوړه او دهغې لپاره يې ودانۍ جــوړه کړه. تر ۱۰۷۴ هــ ق کال پورې په سمرقند کې وه. په ۱۰۷۴ هــ ق کال چې ابو سعید او غلان د شرقي ترکستان حکمرانان و او د کورګان له کورنۍ څخه و، نو خرقه شریفه يې له سمرقند څخه شرقي ترکــستان تــه راوړه او تــر ۱۱۰۹هــ ق کال پورې په بلخ کې وه. هلته په شرقي ترکسان کې دوو تنوچې شیخ اقا محمد او شیخ نظر محمــد نومیدل، دغه چپنه ورسره وه. په ۱۱۰۹هــ ق کال کې شیخ محمد ضیا او شیخ محمد نیاز د بدخــشان دیاربیــګ حکمران په وخت کې غوښتل چې هغه چپنه د چترال له لارې هند ته ولیږدوي، خو د بدخشان والي د دوی په نیت خبر شو، نو دغه چپنه يې ونیوه.د (۱۱۰۹هــ ق کال د محرم الحرام د میاشتې ۲۴په نیټه د(یک شنبې ورځ) د بدخشان د جوزګون په ښار کې يې ورته د ساتلو لپاره ځای وټاکه، یوه ودانۍ يې ورته جوړه کړه . نوموړی ښار په همدغه پورتــه یاده شوی نیټه د فیض اباد په نامه یاد شو. خرقه شریفه ۱۰۹ کاله په بلخ او بدخشان کې وه، یانې ۳۵ کاله په بلخ کې وه . ۷۴ کاله په بدخشان کې وه په هغه وخت دا سیمې د بخارا د واکدار په لاس کې وې د احمد شاه بابا پــه امــر شاه ولي خان دبخارا او افغانستان ترمنځ د اموسیند سرحد وټاکه او له بدخشان څخه يې خرقه شریفه هم کابل او بیــا کندهار ته ولیږدوله، کله چې يې له بدخشان څخه لیږدوله، په لاره کې چا د دې حق نه درلود چې له اوښ څخه مخکې روان وي . له هغه اوښ سره نږدې چاپه اوښ یا اس باندې د سپریدو حق نه درلود. په هر کورکې چې ښکته کیدله، د صندوق لاندې به يې فرش هوارولو. بیا به يې هغه صندوق وربانديې کېښودو، په هر کور کې به خیراتونه کیدل . د هغه اوښ په غاړه کې به يې یوه لیکنه ځوړندوله ،په هغې کې به لیکل شوي وو چې پر دې اوښ مبارکه خرقه شــریفه وړل شوې ده. هیڅوک د دې حق نه لري چې پرې سپور شي او یا وربانديې څه شی بار کړي ،خو د خیرات په نوم یــې د حلالولو اجازه ورکړې وه.
په هغه ځای کې چې به يې صندوق کېښود، په هغه ځای به يې بیرغ ودراوه چې څوک وربانديې ونه ګرزي .
کله چې راوړونکي کسان پروان ته راغلل . د غوربند، پنجشیر، کوهدامن او کابل خلک ورته راغلــي وو. دوه درې ورځې معطل شوه. کله چې کابل ته راوړل شوه، له ښار څخه بهر د علي اباد د غره په څنګ کې ورته ځای وټاکــل شو.
د هرې جمعې په ورځ به خلک ورته ورتلل او په یوه تیره به ایښودل کیده او خلکو به لیدله. امان الله خــان د خپلــې پاچاهۍ په وخت کې د خرقې مبارکې د درناوۍ لپاره د علي آباد په نوموړي ځای کې یو څلی جوړ کړ.

**د ۱۱۸۲ هـــ ق کال د ربیع الاول په ۹ نیټه کندهار ته یووړل شوه. د هغه ښار په لومړی جومات کې چې په ۱۱۷۲ کال جوړ شوی و او د جوړولو امر يې هم احمدشاه بابا ورکړی و، کیښودل شوه ،تر ۱۱۹۶ هـــ ــق کال پورې په هغه جومات کې وه.**

**دغه خرقه شریفه یې له کابل څخه ترکندهار پورې په ۵۰ ورځو کې ورسوله او پوره ۹ میاشتې په کابل کې وه . چې تراوسه پورې خرقه شریفه په کندهار کې ده . د دغې چپنې ځانګړنې دا دي چې وړینه ده ،لستونې یې له قد څخه لنــډ دي . د اوبش له نازکو وړیو څخه جوړه شوي ده . رنګ یې اسماني دی، ځانګړې ځلا لري . د انسان د قدپه تناسب سورلري، استر نه لري . مخکې برخه یې سولیدلې ده .**

**موخذ: تاریخ خرقه شریفه کندهار،**

**– افغانستان در مسیرتاریخ، د میر غلام محمد غبار لیکنه لومړی او دویم چاپ**

# اووم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | سوله او امن | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | – د متن سم لوستل او ليکل وکړای شي،<br>– د سولې او امن په ارزښت باندې پوه شي او خبرې پرې وکړی شي،<br>– د سولې په اړه خپل نظر نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي،<br>– د سولې د ارزښتونو او د جګړو د ناوړو پایلو په اړه خبرې وکړي . | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار | |
| ۴– د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشير، تخته پاک | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي يادښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقيقې |
| ۷_د انګيزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>- څوک ويلی شي چې کله مو د چا تر منځ جوړ جاړی کړی دی؟<br>- څوک ويلی شي چې د خلکو ترمنځ جوړ جاړی کول څه پايلې لري؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی دې د سلام، احوال پوښتنې او مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته دتېر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي او د لوست عنوان دې پرتخته ولیکي.<br>- ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي .<br>-<br>- ښوونکی دې څوتنو ته لارښوونه وکړي چې د نوي لوست متن یو یو پاراګراف د ټولګیوالو په وړاندې په خپل وار سره ولولي.<br>– ښوونکی دې یوه تن ته دنده ورکړي چې په خپله خوښه یوه جمله په تخته ولیکي، دوه یا درې تنه زده کوونکي دې په خپل وار سره د هغې جملې مفهوم او مطلب په خپله ژبه بیان کړي .<br>- ښوونکی دې زده کونکي وهڅوي چې د نوي لوست متن په غور او چوپتیا سره ولولي ،صفتونه دې پکې پیدا کړي او په مناسبو جملو کې دې وکاروي .<br>- څو تنه زده کوونکي دې وګمارل شي چې په وار د متن د مطلب او مفهوم په هکله د ټولګي په مخکې خبرې وکړي .<br>- –زده کوونکي دې وهڅول شي چې د شپږم فعالیت په دوو لیکوکې لیکل شوې کلمې په خپله بڼه خپلو کتابچو ته نقل کړي او بیا دې په دواړو لیکنو کې مترادفې کلمې د کرښو په واسطه سره ونښلوي .<br>- څو تنه زده کوونکي دې وهڅول شي چې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د انسانانو د طبعي او ذاتي حقوقو نومونه واخلي چې باید ورکړل شي . | - زده کوونکي دې د تېر او نوي لوست ترمنځ د اړیکو تشریح ته غوږ ونیسي او تختې ته دې متوجه شي.<br>- زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي او د ښوونکي په وسیله دې د لوست تشریح ته غوږ ونیسي.<br>- څو تنه زده کوونکي دې د نوي لوست متن یو، یو پاراګراف په وار سره په لوړ او مناسب اواز سره ولولي اونور دې ورته غوږ ونیسي .<br>- یو زده کوونکی دې په سم خط سره یوه جمله په تخته ولیکي ، بیا دې دوه یا درې تنه په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د هغې جملې معنا او مطلب دې په خپله بیان کړي .<br>- ټول زده کوونکي دې د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي، صفتونه دې پکې پیدا او په مناسبو جملو کې دې وکاروي.<br>- څو تنه زده کوونکي چې تر اوسه پورې یې په فعالیتونو کې برخه نه وي اخیستې په وار سره دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي .<br>- ټول زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت سرته ورسوي<br>. | ۳۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| – _اوس دې څو زده کوونکي په وار سره د ټولګی مخې ته راوغوښتل شي چې د جګړې د زیانونو په هکله خپل نظر څرګند کړي، بیا دې څو زده کوونکي په دې هکله خبرې وکړي چې تعصب څه زیانونه رامنځ ته کولی شي؟<br>– ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته په لنډ ډول بیان کړي .<br>– له زده کوونکو څخه دې د دې لاندې پوښتنو په کولو سره د لوست د پوهیدو ارزونه وشي. د پوښتنو په ځوابوولو کې دې ډیر زده کوونکي ونډه واخلي او هر یو دې په خپل وار خبرې وکړي .<br>– سوله څه شی ده؟<br>– جګړه څه شی ده؟<br>– سوله څه ګټه لري؟<br>– جګړه کوم زیانونه لري؟<br>– ښوونکی دې د لوست په پای کې کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل پښتو درسي ساعت کې یې له ځان سره راوړي . | – څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د انسانانو د طبیعي او ذاتي حقوقو نومونه دې واخلي.<br>– څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي په مخ کې په وار سره د جګړې او تعصب د زیانونو په هکله سره خبرې وکړي.<br><br>– زده کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي.<br>– ټول زده کوونکي دې د پوښتنو په ځوابولو کې ونډه واخلي.<br><br>– زده کوونکي کورنۍ دنده راوړي . | |

| | |
|---|---|
| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | **صفت** : هغه کلمه ده چې د یوه نوم حالت او څرنګوالی بیانوي . |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | –ښاغلی ښوونکیه! په لومړي فعالیت کې د لوست متن په څو تنو زده کوونکو باندې یو یو پاراګراف په خپل وار سره ولولئ .<br>– په دویم فعالیت کې کله چې یو زده کوونکی یوه جمله پرتخته ولیکي ، نوبیا دې دوه یا درې تنه د هغې جملې معنا او مفهوم په خپل وار سره بیان کړي . |

## اضافي معلومات

سوله هغه تصور یا مفهوم دی چې له شتون سره یې زیاتې انساني ښیګڼې تړلې دي . نه یوازې د ژوند هیلې ورسره تړلې دي ،بلکې ژوند هم ورسره اړیکي لري . که چیرې سوله نه وي .ژوند له ګواښ سره مخامخ وي .سوله ده چې د انساني او بشري ژوند د پایښت پیغام لري . هغه ملتونه ډیر نیکمرغه وي چې په سوله کې رالوی شي، په سوله کې ژوند وکړي او له سولې نه خوند واخلي. ژوند له سولې سره مخامخ تړاو لري او که سوله نه وي ، د ژوند تیرول اصلا ګرانه خبره ده .په سوله کې زده کړه او تعلیم وده مومي. په سوله او امنیت کې پانګونه کیږي، مادي او معنوي بیارغاونه په کې ترسره کیږي.

# اتم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د نیالګیو ایښودل | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | - د متن لوستل او لیکل وکړی شي،<br>- د نیالګیو په ارزښت پوهه ترلاسه کړای شي،<br>- د نیالګیوکرل او ساتنه زده کړی شي،<br>- د نیالګیو په ارزښت خبرې وکړی شي . | |
| ۳- د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار، یوکسیزکار | |
| ۴- د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، تخته، تباشیر، تخته پاک | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>- څوک ویلی شي چې کله مو د نیالیګو په اړه څه اوریدلي دي؟ | ۴ دقیقې |

| | د زده کوونکو فعالیتونه | ۸- د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | - زده کوونکي دې غوږ ونیسي تختې ته دې وګوري . زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا د لوست تلفظ ته غوږ ونیسي او خپلو کتابونو ته دې ځیر شي.<br><br>- له ښوونکي وروسته دې څو تنه زده کوونکي په وار سره د نوي لوست یو، یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز سره ولولي ،نور دې ورته غوږ ونیسي.<br><br>- زده کوونکي دې دکلمو تلفظ ته متوجه شي.<br><br>- زده کوونکي دې په وارسره دنیالګیوپه ګټو اوارزښت باندې خبرې وکړي ،زده کوونکي د ې غوږ ونیسي .<br><br>- زده کوونکي دې د کیسې لنډ مفهوم ولیکي او د ټولګی په مخکې دې ولولي .<br><br>- زده کوونکي د ې په وار سره دلوست دکیسې په هکله اودغه راز دنیالګیودکینولوپه اړه خپل تصمیم ووایي .<br><br>زده کوونکي ځواب ورکوي .<br><br>- زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل وکړي<br>- زده کوونکي خپلو ټولګیو الو ته کیسه کوي او نور ورته غوږنیسي | - ښوونکی دې د لوست عنوان پرتخته ولیکي.<br>- _ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي .<br><br>- ښوونکی دې څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د نوي لوست متن یو یو پاراګراف د ټولګیوالو په وړاندې په خپل وار سره ولولي.<br>- زده کوونکی دې په څو مناسبو ډلو وویشل شي، په خپلو منځو کې دې د نیالګیو په ګټو او ارزښت باندې سره خبرې وکړي ،بیا دې د هر ګروپ په استازیتوب یو یو تن خپل نظر وړاندې کړي .<br>- _زده کوونکی دې وګوماري چې په خپلو کتابچو کې د لوست د کیسې لنډ مفهوم ولیکي او د ټولګیوالو په مخکې دې څوتنه په خپل وار سره ولولي .<br><br>- ښوونکی دې زده کوونکي پر دوو ډلو وویشي، بیا دې له هرې ډلې څخه یو یو زده کوونکی دټولګي مخې ته راوغواړي چې د کیسې په متن کې د سپین ږیري د عزم په اړه خپل نظر ټولګیوالو ته وړاندې کړي ،بیا دې څو زده کوونکي دنیالګیودکینولوپه هکله د خپل عزم په اړه خبرې او اترې وکړي .<br>- ښوونکی دې د لوست د پنځم فعالیت په اړه له زده کوونکو پوښتنه وکړي.<br>- ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي اود هرې پوښتنې ځواب دې له دوو یا دریو زده کوونکو څخه وغواړي چې هر یو په خپل وار سره خپل نظر څرګند کړي خپله ښوونکي دې پوره مرسته ورسره وکړي .<br><br>- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي که دغې کیسې ته ورته کیسه د چا زده وي خپلو ټولګیوالو ته دې ووایي |

| | | |
|---|---|---|
| - بیا دي زده کوونکي وګوماري چې په متن کې پنځه پنځه فعلونه پیدا کړي او په جملو کې یې وکاروي او بیا دې د ټولګیوالو په مخکې ولولي .<br>- ښوونکې دې زده کوونکو ته ووایي چې کله مو په خپل انګړ او ځمکه کې نیالګي کښېنولي دي؟<br>- هر یو دې په خپل وار سره په دې اړه خپل نظر ټولګیوالو ته څرګند کړي .<br>- ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي اود ځو لنډو پوښتنو په کولو سره دې د لوست ارزونه وکړي .<br>- ښوونکی دې په کتاب کې کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل پښتو درسي ساعت کې یې له ځانه سره راوړي . | - زده کوونکي دې په متن کې فعلونه پیداکړي اوپه جملوکې دې وکاروي.<br>زده کوونکي دې دنیالګیو دکرلو په اړه که چیرې یې لیدلې وي اوبایې په خپله کرلې وي خبرې وکړي .<br>- زده کوونکي لنډیزته غوږ ږدي اودپوښتنو ځوابونه وایي .<br>- زده کوونکي کورنۍ دنده اخلي اوپه کورکې یې بشپړوي . | |

| | |
|---|---|
| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | |

## اضافي معلومات

د ونو ډیرښت په دریو ډولونو منځته راځي. د طبیعي ځنګلونو له لارې، د مصنوعي ځنګلونو له لارې او په انفرادي توګــه د نیــالګیو او تخمونو د کینولوله لارې .

په دې ټولو ډولونو کې میوه لرونکي او غیر میوه لرونکي ونې هره یوه خپلې ځانګړتیاوې او ګټې لري . طبیعــي ځنګلونــه چــې هغــه معمولا په لوړو او غرونو کې وي. په طبیعي ډول شنه کیږي، ډیریږي ،یو په بل باندې اغیزه کوي ، د چاپیریال ظاهري بڼې تــه بــدلون ورکوي، هوا ته بدلون ورکوي ،ډیر بارانونه او واورې پرې اوري . د تودوخې درجه کموي، د وحشي ځناورو د اوسیدو لپاره په کــې مناسب ځایونه رامنځته کیږي . د طبیعي ځنګلونو له میوو او لرګیو څخه د سونګ او ابادیو لپاره کاراخیستل کیږي .

زموږ په هېواد کې ځنګلونه د پکتیا ، کنړ او نورستان په غرونو کې زیات لیدل کیږي چې له لرغونو وختونو څخه ترې استفاده کیــږي . طبیعي ځنګلونه د لرګیو ستره منبع بلل کیږي .په هیواد کې د ډېرو طبیعي ځنګلونو شته والی د اقتصادي پیاوړتیا سبب کیږي .

دویم ډول هغه ونې دي چې دولت او شخصي خلک یې په مصنوعي ډول د فارمونو په بڼه په پراخو ځمکو کې کــښېنوي، پــدې ډول ونو کې هم میوه دارې اوبې میوې ونې شاملې وي چې په داسې فارمونو کې له میوو او لرګیو څخه یې د سون لپاره ګټه اخلــي، خــو داسې ځنګلونه په سیمو کې د اب وهوا په پام کې نیولو سره جوړیږي . لدې امله چې په سیمو کې دغه باغونه زیــات شــي ، د میــوه دارو او بې میوو ونو بزغلي جوړیږي چې د پسرلي په موسم کې خلک ګټې ترې اخلي او نیالګي یې کینوي .

دریم ډول دا دي چې خلک په انفرادي ډول په خپلو کورونو، د پټیو په غاړو د ویالو په غاړه د میوه دارو او بې میوو

ونو نيالګي کينوي چې له ميوو څخه خپله استفاده کوي .
ونې او به تبخيروي او دغه تبخير په بيلا بيلو ډولونو وي، په ځينو سيمو کې ۱۷% او په ځينو سيمو کــې تــر ۲۲%
پورې رسيږي .ونې نه يوازې دا چې په اقتصادي لحاظ ډيره ګټه لري په روغتايي برخه او د چاپيريال په سمسورتيا کې هم
مهم رول لوبوي .
ونې او وابښه کاربن ډای اکسايد، د اوبو بخارونه او اکسيجن ازادوي . ځنګلونه او ونې د چاپيريال په ساتلو کې ډيــر
مهم رول لري .ګرد اودوړي جذبوي او د هغوی مخنيوی کوي .
ونې په بادونو باندې هم اغيزه کوي ، په هغو سيمو کې چې ونې ډيرې وي ،هلته د بادونو د لګيدو مخنيوی کــوي ،د
بادونو سرعت ته بدلون ورکوي او په هغو سيمو کې بارانونه زيات اوري .
د ميوه دارو او بې ميوو ونو د رسيدلو لپاره ډير کلونه پکاريږي چې په بشپړل ډول د ګټې لپاره چمتو شي. موږ بايــد د
ونو د کينولو په برخه کې دهغوی اقتصادي ګټې او د چاپيريال په ساتلو کې د سمسورتيا ګټې په پام کې ونيسو او تل د
خپل هېواد د سمسورتيا لپاره ترې کار واخلو او تل ونې کينوو او په ونو کينولو کې  دميوه دارو او بې ميوو ونو دواړه
ډولونه په پام کې ونيسو او هغه کينوو.

# نهم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د تاریخي باغونو په باره کې خبرې اترې | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | - زده کوونکي وکولی شي چې،<br>- متن سم ولولي او جملې یې سمې ولیکي،<br>- د تاریخي باغونو په ارزښت وپوهیږي،<br>- د تاریخي باغونو د ساتنې د ارزښت په اړه خبرې وکړي،<br>- دتاریخي باغونو په اړه معلومات ولري . | |
| ۳- د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار، یوکسیزکار | |
| ۴- د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر، د امکان په صورت کې د تاریخي باغونو انځورونه | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقیقې |
| ۷_د انګیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو تنوزده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>- ایا کله مو کوم تاریخي با غ لیدلی او یا مود تاریخي با غ په هکله څه اوریدلي دي؟<br>- ایا ستاسو په سیمه کې کوم تاریخي با غ شته ؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
| --- | --- | --- |
| - ښاغلی ښوونکی دې د لوست عنوان په تخته ولیکي او د تیر او نوي لوست ترمنځ دې اړیکې ټینګې کړي .<br>- د نوي لوست متن دې د ښوونکي له خوا په لوړ او مناسب اواز ولوستل شي .<br>- ښوونکی د ې زده کوونکي وهڅوي چې د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي.<br>- څو تنه دې د نوي لوست متن په وار په لوړ او مناسب اواز سره ولولي ،نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي .<br>- بیا دې څو تنه په وار سره د نوي لوست لنډ مطلب په خپله ژبه بیان کړي . د ستونزو د موجودیت په صورت کې دې ښوونکی ورسره مرسته کوي .<br>- ښوونکی دې په یو زده کوونکی دله منځه تللو تاریخي باغونو او بل دې د تاریخي شتو باغونو نومونه واخلي.<br>- څو تنه دې په عمومي توګه د باغونو د ارزښت او ګټو په اړه په وار سره د ټولګي په مخ کې خبرو کولو ته وهڅول شي.<br>- ښوونکي دې زده کوونکي وهڅوي چې څو تنه د میوه لرونکو او بیا څو تنه د بې مېوو ونو ګټې بیان کړي .<br>- یوه ډله زده کوونکي دې وهڅول شي چې په خپلو کتابچو کې د تودو سیمو د میوه لرونکو ونو او بله د بې مېوې ونو نومونه په کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي . | - زده کوونکي د ښوونکي خبرو،ښوونو او تختې ته متوجه کېږي .<br>- زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا د لوست د جملو او کلمو سم تلفظ ته غوږ ونیسي.<br>- ټول زده کوونکي دې یو ځل د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي، ستونزمنې برخې دې پکې په نښه کړي .<br>- هر زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا ورسپارل شوې دنده په خپل وار له ښوونکې سره سمه سرته ورسوي .<br>- څوزده کوونکي دې دمتن لنډیز ووایي اونور زده کوونکي دې غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي د ې په ډلییز فعالیت کې برخه واخلي اونور زده کوونکي دې دباغونود نومونویاداشت واخلي .<br>.<br>- څوزده کوونکي دې د تاریخي باغونو دارزښت اوګټو په هکله خبرې وکړي .<br>- زده کوونکي دې دمیوه لرونکواوبې میوو ونو ګټې بیان کړي .<br>- ټول زده کوونکي دې د مېوه لرونکو ونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبو جملو کې دې بیاوکاروي .<br>- زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښونوسره سم دلوست نتیجه ووایي . | ۳۵ دقیقې |

| | زده کوونکي دې باغونوته دتګ اودباغونواوپارکونودساتنې په اړه خبرې وکړي .نور زده کوونکي دې ور ته غوږ ونيسي .<br><br>زده کوونکي دې خپل تصميم بيان کړي .<br><br>– زده کوونکي دې دباغ جوړولو په اړه خبرې وکړي ،وروسته دې بيا ځو تنه په وار سره د لومړني زده کوونکي نظر بيان کړي.<br><br>– زده کوونکي دې د لوست لنډيز ته غوږ ونيسي.<br><br>– زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنې ته د ځواب ويلو لپاره لاس پورته کړي او د ښوونکي په اجازه دې ځواب ووايي. | – په ځو تنو زده کوونکو دې په وار سره د لوست پايله د ټولګيوالو په وړاندې ووايي.<br>– ځو تنه زده کوونکي دې وهڅول شي چې باغونو ته د تګ په هکله سره خبرې اترې وکړي او بيا دې ځو تنه د باغونو او پارکونو د ساتنې په هکله سره خبرې وکړي .<br>– اوس دې ځو تنو ته سپارښتنه وشي چې د باغونو او پارکونو دجوړولو لپاره څه تصميم لري؟ خبرې دې ورباندې وکړي .<br>– ښوونکی دې يوه تن ته دنده ورکړي چې د باغ جوړولو په ارزښت خبرې وکړي . نور دې ورته غوږ ونيسي. بيا دې ځو تنه د لومړني زده کوونکي خبرې تکرار کړي چې څه يې وويل؟<br>– ښوونکی دې د لوست لنډيز زده کوونکو ته ووايي.<br>– د ځو لنډو پوښتنو په کولو سره دې د لوست د زده کړې ارزونه وکړي .<br>– ښوونکی دې د لوست د پای کورنۍ دنده زده کوونکو ته وسپاري چې په بل ساعت کې يې له ځانه سره راوړي . |
|---|---|---|

| | |
|---|---|
| | د متن د ستونزمنو برسخو روښانول |
| | د فعاليتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه |

## اضافي معلومات

له تاريخي ځيړنو څخه جوتيږي چې زموږ په هيواد کې د تاريخي باغونو د جوړولو لړی د هرات د تيموريانو له وخت څخه را پيل شوي ده (۱۷۷۱-۹۲۰هـ.).
د باغونو يوه ځانګړنه داسې وي که چيرې يې پاملرنه وشي او په خپل وخت اوبه ورته ور ورسيږي د اوسيدونکو او ليدونکو د تفريح لپاره ډير په زړه پورې وي او که چيرې ورته پام ونشي هغه وچيږي يا په زراعتي ځمکو بدليږي او يا خو په شاړو د ښتو بدليږي . مثلا موږ په کابل کې هم ډير تاريخي باغونه درلودل چې له هغو يوازې د ګوتو په شمار ځو باغونه پاتې دي چې خلک د تفريح له پاره ورځي. له هغو څخه د کابل په ګذرګاه سيمه کې د بابر بڼ، د چهلستون بڼ، باغ بالا بڼ اوس هم شته چې خلک د ميلو او تفريح لپاره ورځي. دغه راز په کابل کې د خلوت ، ملابابا، بنفشه، نوروزي، چارباغ په نامه هم باغونه موجود وو چې دغه باغونه اوس موجود نه دي او په ځای يې کوروونه جوړ شوي دي .
په پخوانيو وختونو کې د کابل د دارلامان شاوخوا سيمه ډيره سمسوره وه. له ګل باغ څخه نيولې ان تر ګذرګاه پورې

شنه اوله ونوډکه وه. له ګل باغ څخه به ورته اوبه راتللې او دا باغونه پرې اوبه کېدل . د میرز الغ بیګ په وخت کې یوه لویه ویاله له ګل باغ څخه ورته راغلې وه او باغونه پرې اوبه کېدل او تر شیر دروازې سیمې پورې رارسیدلې وه.
تر میرزالغ بیګ وروسته د باغونو د جوړولو بل بهیر د هندي تیموریانو په وخت کې ۹۱۰ اهــــ ق ۱۰۵۱م) پیـــل شوچې په دې وخت کې د کابل شهرارا، جلوه خانه، صورتخانه، مهتاب باغونه یادولای شو. له تاریخي متنونو څخــه جوتیږي چې مهتاب باغ د بالاحصار ختیځ ته و او چارباغ د کابل ښار د اوسنی منډیی ترڅنګ د مخابراتو د پخــواني وزارت ترڅنګ و چې د جوړیدو وخت یې د ملا عبدالحمید لاهوري په وینا د بابرتر واکمنۍ پورې رسیږي چــې د جلال الدین د زیږیدو په وخت کې ۷ورځې په دې باغ کې جشن وشو. د بنفشې باغ د کابل د بالاحصار لویدیځ ته و چې اوس هغه سیمه د شهدای صالحین په نامه یادیږي . تر بابر وروسته نورو واکمنانو هم د هغوی په پل باندې ګــام کیښود. د هرواکمن په دورو کې لږ تر لږه نور باغونه جوړ شول چې له هغو جملې څخه د جهان ارا، او چارباغ بــن یادونه کولای شو. دغه راز جهان ګیر پادشاه هم د باغونوله جوړولو سره مینه درلوده او باغونه یې جوړول .
دمغولوپه وخت کې یوباغ د ننګرهار ولایت د خوږیانو په اشپان کې اوبل د ننګرهار د سره رود په ولسوالی کې اویو د لغمان د چارباغ په ولسوالی کې جوړ شوی و او دغه راز شاه جهان باچا هم د خپل زوی د اراشکوه په غوښتنه په ۱۰۵۶هــ ق کال د مېملې تاریخي باغ جوړ کړ چې نو موړی باغ تر اوسه پورې په هماغه نقشه پاتې دی . خو باید ووایو چې زیات باغونه په مرکزي سیمو کې جوړ شوي دي ځکه چې د واکمنانو پام به مرکز ته زیات و او د هېواد په ولایاتو کې د محمدزیوتر دورې د مخه باغونه نه دي جوړ شوي .
دغه باغونه چې مو یاد کړل په هغو کې د کابل چارباغ بن تر ټولو پخوانی باغ دی چې موقعیت یې د کابـــل ښــار د اوسني مستوفیت او د مخابراتو د وزارت ترمنځ و چې د میرزاالع بیګ په وخت کې جوړ شوی و. د کهزاد په وینا د شهراراباغ د پامیر سینما د سیمې شاوخوا سیمه وه چې په هغه کې د شیر دروازې سیمه هم شامله وه .د عبدالرحمن پاچا په وخت کې د شهرارا برج او شهرارا سیمې جوړې شوي او د شهرارا نومورباندې کیښودل شو خو پخوانې نوم یې د مارانو غونډۍ نو میده.
یو بل باغ د ارامګاه په نامه و، کله چې د بابر مړی له هند څخه راوړل کیدو،نو په لاره کې پښتنو د هغه د مړي دراوړلو مخنیوی وکړ، خو د بابر یوه ښځه د یو سفریو پښتنو څخه وه هغې خپلو پښتنو ته لمن وغوړوله . ورته یې وویل که دا مغل دی خو زما میړه دی . ما ته لاره راکړئ چې هغه د خپل وصیت سره سم کابل ته یوسم ،نو بیا هغه مړی راوړل شو او په نوموړی باغ کې ښخ شو. له هغه وروسته نوموړی باغ د بابر د بن په نامه یاد شو چې اوس هم د خلکو د تفریح لپاره مهم ځای دی . دغه باغ د قاسم خان صوبدار په وخت کې جوړ شوی دی او په ۱۵۵۵م کال کې ودان شوی دی .
یو بل تاریخي باغ د علم ګنج په نامه و چې دغه باغ د تیمورشاه باچا په وخت کې جوړ شوی دی چې اوس د هغه په ځای باندې حربي فابریکه جوړه شوي ده.
د شلمې پیړی له باغونو څخه د چهلستون باغ، پل باغ عمومي، باغ دلکشاه، باغ تاج بیګ، باغ قرغه، بادام بـــاغ او نوردي .


۱. افغانستان در عصرګورګانیان هند، پوهاند عبدالحی حبیبي
۲. د پوهندوی رسول باوري یادشتونه

# لسم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | عبدالقادر خان | |
| ۲– د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | – زده کوونکي د لرغوني شاعر عبدالقادر خان ژوند او اثار وپيژني،<br>– د اثارو ساتلو احساس ورسره پيدا شي،<br>– د زده کړې خواته عملا هڅه وکړي،<br>– دوی هم اثار وليکي او د ټولني د خدمت لپاره يې وړاندې کړي،<br>– له خپلو شاعرانو سره مينه پيدا کړي . | |
| ۳– د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار، يوکسيزکار | |
| ۴– د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک ،تباشير | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د يادښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقيقې |
| ۷_د انګيزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له ځو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>د عبدالقادر خان په نوم کوم شاعر پيژنئ ؟<br>– دعبدالقادرخان ختک په اړه څه معلوما ت لرئ . | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی زده کوونوته لارښوونه کوي چې یو ځل نوی لوست په چوپه خوله ووایي ،بیا ځو زده کوونکي د متن یویو پاراګراف وایي. | - زده کوونکي هم له ښوونکی سره سترې مشي کوي او کورنۍ کار ورته ښیي او خپلو ټولګیوالوته یې وایي. | ۳۵ دقیقې |
| - ښوونکی یا په خپله یاد زده کوونکو پواسطه ځو لغتونه په تخته لیکي ،خو د لیکلو په وخت کې ټولګی هم ځاري، بیا زده کوونکي د تختې لغتونه په خپلو کتاپچو کې. په جملو کې استعمالوي . | - زده کوونکي ورته ځواب ورکوي . زده کوونکي متن ته ګوري چې د کلمو سم تلفظ او د جملو ترکیب بندي زده کړي . | |
| - ښوونکی زده کوونکي په دوو مناسبو ډلو ویشي. یوه ډله په خپلو کتابچو کې خاص نومونه د متن له مخې او بله ډله په خپلو کتابچو کې صفتونه په نښه کوي .بیا د یوې ډلې زده کوونکي د خپل ګروپ له خوا نښه شوي یو صفت په تخته لیکي د بل ګروپ یو زده کوونکی یې په جمله کې کاروي . بیا د دویم ګروپ یو زده کوونکی خاص نوم په تخته لیکي او بل یې په جمله کې کاروي . | - زده کوونکي د تختې لغتونه په جملو کې استعمالوي. زده کوونکی ښه په ځیر سره غوږ نیسي او بیا یې په جمله کې کاروي . | |
| - په ځو زده کوونکوباندې د عبدالقادر خان په اړوند په هکله خبرې کوي . | - زده کوونکي د عبدالقادر خان په ژوند خبرې کوي او نور ورته غوږ نیسي. | |
| - په ځو زده کوونکو باندې د شاعری د ازرښت په هکله خبرې کوي . | - زده کوونکي غوږ نیسي . - زده کوونکي د ښوونکي په اشاره پورته کیږي او خپلو ټولګیوالوته دژباړل شوو اثاروپه هکله خبرې کوي . | |
| - ځو زده کوونکي پورته کوي چې د ژباړل شوو اثارو د ازرښت په هکله خبرې وکړي . | - زده کوونکي د ٦شمیرې سره سم خبرې کوي . | |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو د متن د ٦ شمیرې پوښتنې وکړي . | - زده کوونکي د ۷ فعالیت تش ځایونه په خپلو کتابچو کې د متن له مخې ډکوي . | |
| - ښوونکي دې د کتاب د متن له مخې د فعالیتونو د۷ شمیرې خالي ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړي . | زده کوونکي د ښوونکي له خوا د لوست لنډیز ته غوږ نیسي . | |
| - ښوونکي دې یو ځل د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي . | - زده کوونکي ځواب ورکوي . | |
| - د لوست د ازریابی په خاطر دې له زده کوونکو ځخه | - زده کوونکي دې کورنۍد نده واخلي . په کورکې دې بشپړ کړي او په بل پښتو | |

| | | |
|---|---|---|
| د هغوی د فردي لیاقت په پام کې نیولو سره پوښتنې وکړي خو اعلی، متوسط او کمزوري زده کوونکي دې په پام کې ونیسي.<br>- د کتاب له مخې دې کورنۍ دنده ورکړي . | درسي ساعت کې  دې ټولګیوالو ته وایي. | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | - **اکوړه خټک** : د پیښور او پنډۍ په لوی واټ د نوښار او اټک تر منځ پرته سیمه ده.<br>- د عبدالقادر خان د پلار خوشحال خټک او عبدالقادر خان جنګونه د مغلو په مقابل کې د خپلو سیمو د ازادۍ اود مغلوله  ظلمونو څخه د خلاصون لپاره وو.<br>- په هغه وخت کې د وحدت الوجود او وحدت الشهود تصوفي طریقې ډیرې مخته تللې وي .<br>- **قصیده** : د شعر یو ډول دی چې د صفت ،بدویلو، حکمت اویا حماسې په باره کې ویل کیږي چې دوه لومړۍمصرۍ یې د نورو بیتونوله دویمو سره  یو ډول قافیه ولري او د بیتونو شمیر یې له ۱۶ څخه زیات وي د قصیدې جمع قصاید دي | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | - عبدالقادر خټک د پښتو ژبې د شتمنۍ لپاره اثار ولیکل او ویې ژباړل .<br>- عبدالقادر خان خټک ګل دسته، یوسف زلیخا، څلویښت حدیثونه او د برده قصیده ژباړلي دي . | |

## اضافي معلومات

عبدالقادر خان د خوشحال خان ختک زوی و چې په ۱۰۶۳هـــ ق کال د پیښور په اکوړه ختک کې زیږیدلی دی . په کوچنیوالې چې د ۴ کالو و ،له پلار څخه یې لوست پیل کړ. ورو ورو یې نورې دودیزې زده کړې وکړې . په عربي او فارسي ژبه کې یې پوره پوهه ترلاسه کړه.، نوموړي به په عربي او فارسي ژبه نورو طالبانو ته لوست ورکـــاوه. نــو موړی شاعر و، لیکوال و او په ژباړه کې یې پوره ځواک درلود. د سعدي ګلستان او د مولانا جامي ګلدسته یې پـــه پښتو ژبه په روانه توګه ژباړلې ده . له دې څخه معلومیږي چې نوموړي د وخت په علومو کې پوره لاس درلـــود. لـــه څیړنو څخه معلومیږي چې نوموړي د خپل کاکا فقیر جمیل بیګ له لور سره واده کړی دی.

هغه له خپل پلار سره ډیره مینه در لوده او په شعرونو کې یې یاد کړی دی او له خپل پلار سره یې په جنګونو کې برخه اخیستي ده، نوموړی په ۱۰۸۵هـــ ق کال کې له شیر محمد بنګښ سره په جګړه کې ګډون درلود او په همغه جګړه کې ټپي شوی هم و. نوموړي کابل ته هم راغلی و، د پټې خزانې د کتاب په حواله نوموړی په ۱۱۱۳ هـــ ق کال کې په کابل کې لیدل شوی دی . د تاریخ مرصع په حواله تر ۱۱۲۵هـــ ق کال ژوندی و.

عبدالقادر خان په ۱۱۱۳هـــ ق کال کې د خپل قام مشری کړیده ،خو وروسته د ځینو لاملونو له مخې د خپل کلـــي پریښود لوته مجبور شوی دی . د میجرراورټي په وینا د هغه ورونه له قادرخان سره ملګری وو،خو د هغوی خوښه وه چې نوموړی د قام مشر وي، خو د مشری دعوه افضل خان هم کوله او ځان یې مستحق باله . ویـــل کیـــږي چـــې عبدالقادر خان او د هغه ورونه بیا وروسته بندیان شوي دي او په یوه ورځ وژل شوي دي ، نو ځکه د هغه د مـــرګ تاریخ او یا نور څه ادبي کارونه په تیارو کې دي ، خو لاندې شعر د هغه ژوند تر ۱۱۲۵هـــ ق پورې یقیني کوي .

دوه شپیته کاله دې عمر په سهو

عبادت دې په عادت نیکی په سهو

د پیداینښت له کال سره چې ۶۲ جمع شي ،نو هماغه ۱۱۲۵ کال ترې جوړیږي .

د عبدالقادر خان دشاعری په هکله د هغه د وخت شاعرانو د هغه ستاینه کړي ده، لکه : اشرف خان هجري ،قاســـم علي خان اپریدي او قاضي میر احمد شاه رضواني.

د عبدالقادر خان دغه لاندې تالیفات اوژباړې تراوسه پورې شته.

۱- د اشعارو د یوان ۲- ادم خان او درخانۍ ۳- یوسف او زلیخا پښتو منظومه ژباړه ۴- حدیقهٔ ختک ۵- ګلدسته د ګلستان ژباړه ۶- نصیحت نامه ۷- د چل حدیث ژباړه .

میجر راورټي دهغه اثار تر شپیتو پورې بولي ،خو نومونه یې ذکر کړي نه دي .

عبدالقادر خان ختک د نظم په بېلابېلو ډولونو کې شاعري کړی ده، لکه :غزل، قصیده، رباعي، قطعه، مثنوي، ترکیب بند، ترجیح بند، مربع او مخمس او داسې نور.

ماخذونه : د عبدالقادرخان دیوان، پیښور پښتو اکادمي چاپ

# یوولسم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱− د لوست موضوع | دارالامان مانۍ | |
| ۲− د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | − د متن لوستل او لیکل وکړای شي،<br>− د دارالامان مانۍ په اړه معلومات ترلاسه کړي او نوروته د دارالامان مانۍ په اړه معلومات ورکړی شي،<br>− د دارلامان مانۍ په تاریخي لرغونتوب باندې وپوهیږي او په مفهوم یې خبرې وکړای شي،<br>− د هر ډول تاریخي اثارو د ارزښت او ساتنې په اړه فکر وکړی شي. | |
| ۳− د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار، یوکسیزکار | |
| ۴− د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر | |
| ۵− د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي یادښت کتابچه | |
| ۶− د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ۶ دقیقې |
| ۷_د انګیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>− تاسې کوم وخت په خپلو سیمو یا ښارونو کې پخوانۍ تاریخي ودانۍ لیدلې دي؟ څوک په دې اړه څه ویلی شي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی دې د سلام، احوال پوښتنې او مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته دتیر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي او د لوست عنوان دې پرتخته ولیکي.<br>- ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي . د متن د لوستلو په وخت کې دې د ټولګي څارنه هم وکړي .<br>- ښوونکی دې زده کوونکي وګوماري چې متن په چوپه خوله ولولي ، د ښوونکې له خوا پر تخته لیکلي لغتونه او د هغو معناوې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. له لغتونو څخه دې مناسبې معنا وې په خپلو کتابچو کې ولیکي. له لغتونو څخه دې مناسبې جملې جوړې کړي او په وار سره دې د ټولګیوالو په مخ کې ولولي.<br>- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي .د لوستل شوي لوست مفهوم دې په خپله ساده ژبه نورو ټولګیوالو ته ووایي.<br>ـ ښوونکي دې له زده کوونکو څخه وغواړي که چیرې د بلې مانۍ په اړه معلومات لري، نورو ټولګیوالو ته دې خپل معلومات واوروي .<br>- ښوونکی دې زده کوونکي وګماري چې د دې لوست د فعالیتونو څلورم فعالیت سرته ورسوي .<br>- زده کوونکي دې په څو مناسبو ډلو وویشل شي او هره ډله دې د تاریخي مانیو د ارزښت ، ساتنې او نوو مانیو د جوړولو په ارزښت خبرې وکړي او بیا دې د هر ګروپ په استازیتوب یوتن د خپل ګروپ نظر نورو ټولګیوالو ته ووایي.<br>- څو تنه زده کوونکی دې وهڅول شي چې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ووایي چې په جګړو کې د انسانانو کوم حقوق له منځه ځي. | - زده کوونکي دې د تیر او نوي لوست ترمنځ د اړیکو تشریح ته غوږ ونیسي او تختې ته دې متوجه شي.<br>- زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیرشي او د ښوونکي د لوست تشریح ته دې غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي ،لغتونه دې معنا او په مناسبو جملو کې دې وکاروي ،په وار سره دې دټولګي مخې ته راشي ،د ټولګیوالو په مخې کې دې و وایي.<br>- څو تنه زده کوونکي چې تراوسه پورې یې په فعالیتونو کې ونډه نه وي اخیستې په وار سره دې د لوست د مفهوم په اړه خبرې وکړي .<br>- زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل وکړي اودبلې مانۍ په اړه دې معلومات وړاندې کړي .<br>- زده کوونکي دې فعالیت سرته ورسوي .<br>- زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم ګروپي فعالیت سرته ورسوي .<br>- څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي چې په جګړو کې د انسانانو کوم حقوق له منځه ځي په دې هکله دې خبرې وکړي. | ۳۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| - ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي. د ځو لنډو پوښتنو په کولو سره دې د لوست د زده کړې ارزونه وکړي .<br><br>- ښوونکی دې د لوست په پای کې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي چې په بل درسي ساعت کې یې له ځانه سره راوړي . | - زده کوونکي دې غوږ ونیسي. زده کوونکي دې لنډ لنډ ځوابونه ووایي.<br><br>- زده کوونکي دې کورنۍ دنده واخلي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې ښوونکي ته وښیي. | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | | |

## اضافي معلومات

په هر هېواد کې تاریخي ودانۍ موجودې وي چې پوره تاریخي ارزښت لري . زموږ په هیواد کې هم ډیـــرې تـــاریخي ودانۍ موجودې دي او یوه له هغو څخه په کابل ښار کې د دارلامان تاریخي مانۍ ده چې د امیر امان الله خان (۱۲۹۸ – ۱۳۰۷) د واکمنۍ په وخت کې د کابل ښار په جنوب لویدیځ خوا کې د چاردهي په سیمه کې جوړه شوي ده.

د دغې ودانۍ جوړولو کار د امیر امان الله خان په وخت کې د الماني انجینیرانو په لارښونو د ۱۳۰۲ هــ ق کال د میزان په ۲۴ نیټه پیل شو چې د نوموړو انجینرانو مشري اولارښوونه والتر هارتن انجینیر کوله .

د دغې ودانۍ کار په ۱۳۰۶ هــ ق کال کې د نوې معمارۍ په دود د ۳۳ مترو په لوړ والي په درو پوړونو کې پیل شو، خو په همدغه کال یې د جوړولو کار بشپړ نه شو. د دریم منزل شرقي او غربي برخه په ۱۳۰۶هــق کال کې جوړه شوه چې تر ۱۳۰۷ کال پورې یې د جوړولو کار اتکل شوی و.

دغه تاریخي ودانۍ چې ۱۵۰ لویې او کوچنۍ خوني لري په خپل وخت کې ډیرې نامتو وې . د دغې ودانۍ د جوړولو په کار کې له الماني انجینرانو سره افغاني معمارانو هم کارکړی دی چې په دې ودانۍ کې د دریم پوړ لویـــه خونـــه د پارلمان د ناستې لپاره وه او دومره ښکلې جوړه شوې وه چې په هغه وخت کې یې د نړۍ په هیوادونو کې ساری نـــه درلود.

د دې ودانۍ په لومړي برج کې د پاچا د کار د فتر و او د اړتیا وړ اوبه یې د قلعه قاضي د چونغر له چینې څخه راغلې وې، د دې ودانۍ نیمګړې کارونه په ۱۳۰۷ هــق کال کې پای ته ورسیدل . له دغې ودانۍ څخه د نادرخان په وخت کې د طب پوهنځي د لیلیې لپاره کار واخیستل شو. خو د سردار محمد داود خان د صدراعظمۍ په وخت کې د فواید عامې او مالیې وزارتونه په کې وو. په ۱۳ ۳۴ کال کې وسوځید له .ډیرې خونې یې له منځه لاړې ،خو کله چې سردار محمد داود خان ولسمشر شو، بیا یې رغونه وشوه او جوړه شوه او د عدلیې وزارت دفترونه ورته راغلل ،خو د ثور تر کودتا وروسته د پوځي کارونو لپاره وکارول شوه. تر ۱۳۷۱ هـــش کال وروسته د کورنیو جګړو پـــه بهیـــر کـــې بیاورانه شوه.

موخذ: فرهنګ کابل باستان، جلد دوم، د عزیز الدین وکیلي تالیف.

# دولسم لوست

## د تدريس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | عالمان دي روښانايي د دې دنيا | |
| ۲– د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | – زده کوونکي به د دغه لوست په زده کړه سره د عالمانوپه باره کې معلومات ترلاسه کړي،<br>– د علم د زده کړې په ګټو به وپوهيږي،<br>– د متن ليکل او لوستل به زده کړي،<br>– د نوو لغتونو په معنا او په جملو کې به د هغو په کارونه وپوهيږي،<br>– زده کوونکي به د خبرو اترو تمرين وکړي،<br>– زده کوونکي به دې ته وهڅول شي چې ډير څه زده کړي،<br>– زده کوونکي به د علم او عالم په ارزښت او قدر وپوهيږي . | |
| ۳– د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار، يوکسيزکار | |
| ۴– د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشير | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي يادښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقيقې |
| ۷_د انګيزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له ځو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي .<br>- تاسې پوهيږئ چې د نړۍ اوسني پرمختګونه د چا د هڅو محصول دي؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی متن په لوړ او مناسب غږ لولي.<br>- ښوونکی دې زده کوونکي پر ډلو وويشي او هرې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې متن په چوپتیا سره د یو بل په مرسته ولولي.<br>- ښوونکی دوو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ټولګی مخې ته راشي او د عالمانو او علم په باب خبرې اترې وکړي<br>- ښوونکی درو تنو زده کوونکو ته دنده ورکوي چې یو د متن لغتونه معنا، دویم یې پر تخته ولیکي او دریم یې په جملو کې استعمال کړي .<br>- په یو زده کوونکي دې په تخته دمتن له مخې یوه جمله ولیکي اوپه نوورزده کوونکو دې په خپلوکتابچوکې انکشا ف ورکړي .<br>- ښوونکی دې زده کوونکوته لارښوونه وکړي چې د علم او عالم په باب یوه مقاله ولیکي او په بل درسي ساعت کې یې راوړي | - زده کوونکي متن ته ګوري او غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي د یوبل په مرسته لوست زده کوي او د ستونزو په باب پوښتنه کوي .<br>- زده کوونکي غوږ نیسي.<br>- زده کوونکي ورته ځیر کیږي .<br>- زده کوونکي دښوونکي د لار ښوونې سره سم فعالیت اجرا کوي .<br>- زده کوونکي موضوع یادداشت کوي اوپه کور کې ور باندې کار کوي . | ۳۵ دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | - تورې تیارې : دلته تورې تیارې د ناپوهۍ په معنا کارول شوي دي .<br>- پرمختګ : د علم د زده کړې په واسطه د ټولنیزو پروګرامونو علمي کول یا پلي کول .<br>درناوي : قدرت، عزت او احترام | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | - عالم هغه څوک دی چې په څو یا ډېر و علومو د پوره پوهې او تجربې خاوند وي . | |

## اضافي معلومات

که چېرې د بشري ټولنو د علمي پرمختګونو تاريخچه په کره توګه وڅېړل شي ،څرګند يږي چې عالمان د دې دنيـــا روښانه وونکي دي .

که چېرې په دنيا کې پوهان نه  وای ،نو د جهان په مخ به نننی پرمختګونه چانه وولیدلي. همدا پوهان دي چې د نړۍ د هر هېواد، هر اړخيزو پرمختګونو لارې پرانيځي .که چېرې پوهان نه وای ،نو له يوې خوا به پرمختګ نه وای شوی او له بلې خوا به د جهان وګړي د ناپوهۍ په تورو تيارو کې پاتې وای .همدا پوهان دي چې په نړۍ کې د وګړو د هـــر اړخيزې پرمختيا په لاره کې نه هېرېدونکې خدمت کوي .له همدې امله د دنيا د هر هېواد، د پوهانو خدمتونه د جهان د برياوو د تاريخ په زرينو پاڼو کې د هميشه له پاره په طلا يي کرښو ليکل شوي دي، د هر هېواد خلک د خپلو پوهانو د درناوي په موخه د هغوی د يادلپاره د دوی د نومونولمانځنه کوي .

که چېرې د هېواد او د نړۍ د علماوو د پيژندلو او د هغو د نه هېرېدونکو هر اړخيزو خدمتونو په هکله ځيرنې وشـــي ،له يوې خوا د علماوو سره اشنا يې پيدا کېږي اوله بلې خوا د بېلابېلو کتابتونو د ليدلو په لړ کې د بې شميرو علمـــي کتابونو سره بلديت پيدا کيږي . په پايله کې د زياتو معلوماتو د ترلاسه کولو په لار کې د نورو کسانو سره معنـــوي مرسته کيدای شي.

که  ځيړنې وکړو، نو له يوې خوا به زموږ معنوي علمي معلومات زيات شي او له بله پلوه به د بـــېلا بېلـــو ځيړنـــو د معلوماتو له مخې د ډېرو کتابونو د ليکلو متنونو د هغو د متحوا، موخو او په هر اړخيزو غوښتنو پوه شو.

# دیارلسم لوست

## د تدریس وخت : ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | عبدالرؤف بېنوا | |
| ۲– د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | _ زده کوونکي به په دغه لړ کې د شاعر په باب معلومات پيدا کړي،<br>_ د ليکوال د پېژندنې په برخه کې به زده کوونکي هلې ځلې وکړي،<br>_ زده کوونکي د اړوند لوست د نوو لغتونو معنا او په جملو کې د هغو کارول زده کړي،<br>_ زده کوونکي د هېواد د ليکوالو د پېژندلو په ارزښت وپوهېږي او د خدمتونو په باب يې معلومات پيدا کړي . | |
| ۳– د تدريس لارې چارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړې، ډله ييز کارونه | |
| ۴– د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتابونه، مجلې، اخبارونه، درسي کتاب، چارتونه، توره تخته، تباشير، تخته پاک | |
| ۵– د ارزونې لارې وسيلې | وينايیزه ارزونه، سوال او ځواب، ځارنيزه ارزونه، ليکنيزه ارزونه | |
| ٦– د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د حاضرۍ اخيستل، په ښلا ښلو ښو کورنۍ دندې کتنه . | ٦ دقيقې |
| ۷– د انګېزې رامنځته کو ل | –تاسو کوم ليکوالان پېژنئ؟<br>– دبينوا نوم مواوريدلی دی ؟ اوپه اړه موڅه اوريدلي دي ؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ـښوونکی دې د اړوند لوست متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.<br><br>ـښووونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي، سپارښتنه دې ورته وکړي چې متن په چوپتیا د یوه بل په مرسته ولولي او ښوونکی دې د هغوی څارنه کوي .<br>ـښوونکی دې دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د هغو لیکوالانو په باب چې یې پیژني، نورو ته معلومات ورکړي .<br>ـښوونکی دې په یوه زده کوونکي د اړوند درس لغات په تخته ولیکي ،په بل زده کوونکي دې معنا کړي او بیادې نور زده کوونکي هغه لغات په خپلو کتابچوکې په جملو کې وکاروي . | زده کوونکي دې د ښوونکي درس لوستلوته غوږ ونیسي.<br><br>زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي ،د یوه بل په مرسته د ې د خپلو ستونزو په باب پوښتنې وکړي .<br><br>زده کوونکي دې دټولګي په مخ کې د لیکوالو په اړه معلوما ت وړاندې کړي .<br><br>زده کوونکي دې تختې ته متوجه شي اوبیادې لغتونه په خپلوکتابچوکې په جملوکې کاروي . | ۳۵ دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | ۱ــ بېنوا: عاجز، بې برخې<br>۲ــ څېړونکی: تحقیق کوونکی<br>۳ــ نامتو: مشهور<br>۴ــ ورځپاڼه : ورځنی اخبار<br><br>بېنوا: زموږ د هېواد نامتو لیکوال دی .<br>څېړونکی: هغه څوک چې عملي څېړنه کوي .<br>نامتو: احمدشاه بابا د پښتنو نامتو مشر و. | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | | |

## اضافي معلومات

اروانښاد عبدالروف بېنوا د عبدالله زوی په قوم پښتون په (۱۲۹۲ هــ . ش.) (۱۹۱۳ م.) کال کې د کندهار ولایت په (پاسمول) کې زېږېدلی دی . په خصوصي توګه یې د خپل وخت مروجه علوم پای ته رسولې دي . د پښتو ژبې پېژندل شوی څېړونکی،نامتو لیکوال او پوخ شاعر و. سربېره په خپله مورنۍ ژبه (پښتو) په دري، عربي، اردو، انګرېزي او روسي ژبو هم ښه پوهېده. بېنوا له پخوا څخه د شعر او نثر لیکلو سره ډېره مینه درلوده. د ده لومړي لیکلي شعرونه او نثرونه د خپل وخت په ورځپاڼو، جرېدو او مجلو کې خپاره شوي دي چې د کندهار د (طلوع افغان) ورځپاڼه یې ښه څرګندویه ده.
نوموړي د خپل ژوند په اوږدو کې ډېرې ستړې دندې په ډېر ویاړ او بریالیتوب ترسره کړې دي .
بېنواپه (۱۳۱۵) هــ . ش. ۱۹۳٦ ع. کال کې له کندهار څخه کابل ته راغی او په ۱۳۱۸ ش کال کې د پښتو ټولنې د مسلکي غړي په توګه وټاکل شو. بیا په دې ټولنه کې د صحافت د څانګې مدیر او وروسته د کابل مجلې چلوونکی شو، وروسته د پښتو ټولنې مرستیال اوپه ۱۳۲۵ ش. کال کې د پښتو ټولنې لوی مدیرشو، د هېواد ورځپاڼې د چلولو دنده یې تر

| |
|---|
| پنځو کلو پورې په بریالیتوب سره مخ په وړاندې یووړله، بېنوا د خپلې پوهې له مخې په مطبوعاتو کې د نشراتو مدیر ،بیا په نوي ډهلي کې د افغانستان د سفارت مطبوعاتي استازی او په ۱۳۳۵ ش. کال د افغانستان راډیو رئیس و. په ۱۳۴۱ کال کې یې په مصر کې د افغاني سفارت د مطبوعاتي استازي ، بیایې د قبایلو د ریاست د مرستیال، ورپسې یې د پښتو ټولنې د رئیس، بیایې د اطلاعاتو او کلتورد وزیر په توګه خپلې دندې په بري سرته رسولې. بېنوا د خپلو کارونو په څنګ کې د پښتو ژبې او ادب د ودې لپاره هم ستر ګامونه اخیستي دي .<br>بېنوا د ډېرو علمي او ادبي خدمتونو له سرته رسولو څخه وروسته په ۱۳۶۳ هـ . ش . کال له نړۍ څخه سترګې پټې کړې . |
| بېنوا د پښتو ادب په خپرولو کې ډېر کتابونه لیکلي چې ځینې یې دا دي :<br>۱ــ پښتو ژبې د کورسونو درسي کتاب<br>۲ــ پردېس په پښتو ژبه د پښتو ژبې په نظم د ډاکټر اقبال د مسافر په نوم ترجمه شوی اثر دی.<br>۳ــ پښتو د شاهانو په دربار کې تاریخي رساله<br>۴ــ پښتنې مېرمنې(دافغاني میرمنوژوندلیک)<br>۵ــ میرویس نیکه(تاریخي اثر دی )<br>٦ــ د غنمو وږی (نظم)<br>۷ــ ادبي فنون ( دادبي صنایعو په اړه لیکل شوی دی .<br>۸ــ خوشحال خان خټک څه وایي؟ (تحقیقي اثر)<br>۹ــ پښتونستان (د پښتنواو پښتونخواپه باب معلومات)<br>۱۰ــ د ډار مستټر پښتو څېړنې (پښتو ترجمه)<br>۱۱ــ پرېشانه افکار<br>۱۲ــ د زړه خواله(په نثرکې دی )<br>۱۳ــ د ګیتا نجلي (پښتو ترجمه)<br>۱۴ــ د پښتو قرائت (درسي کتاب)<br>۱۵ــ خوشحال خان او پښتو رساله<br>۱٦ــ پاچا خان او پښتو ژبه له اردو څخه ترجمه شعري کتاب<br>۱۷ــ اوسني لیکوال لومړی ټوک<br>۱۸ــ اوسني لیکوال دوهم ټوک<br>۱۹ــ اوسني لیکوال دریم ټوک<br>۲۰ــ زوړ ګنهګار (ډرامه)<br>۲۱ــ زلمی شهید (ډرامه)<br>۲۲ــ وېښ زلمیان<br>۲۳ــ پښتو د هوتکو په دوره کې<br>۲۴ــ د افغانستان نومیالي لومړی ټوک<br>۲۵ــ د افغانستان نومیالي دوهم ټوک<br>۲٦ــ د افغانستان نومیالي دریم ټوک |

۲۷_ د افغانستان تاریخي پېښې
۲۸_ چند اهنگ ملي
۲۹_ هوتکي ها (د هوتکیانو تاریخ) په دري ژبه
۳۰_ پاچا خان، له اردو څخه په دري ترجمه
۳۱_ نظري به پښتونستان ،په دري ژبه
۳۲_ لیډران امروزي پښتونستان ،په دري ژبه
۳۳_ اشتباه (ډرامه)
۳۴_ اشیانه عقاب (ډرامه)
۳۵_ حکومت بېدار است (ډرامه)
۳٦_ زرنګ (ډرامه)

**ویده زوی ته!**

زه عــاجز بــه نفــس هــوا کــوم تــر کومــه — خورم ســور ســک خیاــل د حلــوا کــوم تــر کومــه
لــه خــوارۍ او غریبــۍ نــه مــې عــار نــشته — زه احتیــاج بــه د بــل چــا کــوم تــر کومــه
چــې پخپلــه میــړه نــه یــم پــه دنیــا کــې — نــو بــه فخــر پــه بابــا کــوم تــر کومــه
چــې د نــن کــار و ســبا تــه زه معطــل کــړم — اعتبــار بــه پــه ســبا کــوم تــر کومــه
بــې زحمتــه راحــت کلــه بېنــوا شــته — نــو خــلاف لــه دې وینــا کــوم تــر کومــه

د اوسنیو لیکوالانو ۱_۲_ ۳_ ټوک کتابونه، عبدالرؤف بېنوا

# څوارلسم لوست

## د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | سره میاشت | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | - د متن سم لوستل او لیکل وکړی شي،<br>- سره میاشت وپیژني،<br>- د سرې میاشتې د ارزښت په اړه خبرې وکړی شي،<br>- د بېوزلو او محتاجو کسانو سره د سرې میاشتې له لارې مرسته وکړي،<br>- د متن په لوستلو او لیکلو کې په علاقمندۍ سره ونډه واخلي. | |
| ۳- د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اوریدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار،یوکسیزکار | |
| ۴- د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ۶ دقیقې |
| ۷- د انگیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له ځو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي .<br>- تاسې کوم وخت د سرې میاشتې د مرستو په اړه چې له چا سره یې کړې وي څه او ریدلې دي؟ څوک په دې اړه څه ویلی شي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
| --- | --- | --- |
| - ښاغلی ښوونکي دې د لوست عنوان پر تخته ولیکي. له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته دې د تیر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي .<br>- ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي .<br>- په زده کوونکو دې د نوي لوست یو یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز سره ولولي.<br>- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپلو کتابچو کې د لوستل شوی متن په رڼا کې د دې لاندې جملې په دوام څو جملې ولیکي:<br>- سره میاشت یوه خیریه مؤسسه ده چې له مصیبت ځپلو وګړو سره مرسته کوي ...<br>- وروسته دې بیا هر یوزده کوونکی په نوبت سره خپلې لیکلی جملې د ټولګي په مخکې ولولي.<br>- ښوونکی دې یوزده کوونکی پورته کړي چې د سرې میاشتې په اړه چې کوم وخت زموږ په هېواد کې رامنځته او په بیلابیلو وختونو کې په کومو نومونو یاده شوې ده خبرې وکړي؟<br>- بیا دي څو زده کوونکې په نوبت سره راوغواړي چې د ټولګیوالو په مخ کې د لوستل شوي لوست په مفهوم باندې خبرې وکړي .<br>- ښوونکی دې زده کوونکي په څو مناسبو ډلوویشي. یوه ډله دې له متن څخه په (س) پیل شوې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي بله ډله دې په (ت) توري او بله ډله – دې په (هــ) توري پیل شوې کلمې ولیکي او مناسبې جملې دې ترې جوړې کړي .<br>- ښوونکی دې د لوست د دریم فعالیت پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي او د هرې پوښتنې ځواب دې له دوو یادریو زده کونکو څخه وغواړي چې هر یو خپل | – زده کوونکي دې غوږ ونیسي او تختې ته دې ځیر شي.<br>– زده کوونکي دې د ښوونکي له خوا د لوست تلفظ ته غوږ ونیسي او خپلو کتابونو ته دې ځیر شي.<br>– زده کوونکي دې په وار سره د نوي لوست یو یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز سره ولولي .نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>_ زده کوونکي دې په خپلوکتابچوکې دښوونکي له لارښوونې سره سمه جمله ولیکي او انکشاف دې ورکړي.<br>– زده کوونکي دې غوږ ونیسي.<br>–زده کوونکي دسرې میاشتې په اړه خبرې کوي اودلوست مفهوم په خپلوخبروکې وړاندې کوي .<br>_ زده کوونکي په مناسبو ډ لوکې دکتاب له مخې کلمې پیداکوي اومناسبې جملې ورته جوړوي .<br>زده کوونکي ځواب ورکوي . | ۳۵ دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| خپل نظر په جلاجلا ډول څرګند کړي .<br>- ښوونکی دې ځينې زده کوونکې دتختې مخې ته راوغواړي چې دلاندې بيتونو مفهوم او معنا نورو ټولګيوالو ته ووايي.<br>ژاړي په غمونو کې خوا خوږي له هرچاسره<br>سل پتنګان سوزي د يوې شمعې ژړا سره<br>نه ښايي انسان ته چې د بل په غم غمجن نشي<br>لويه بدبختي ده که څوک نه ژاړي له چا سره.<br>- په پای کې دې ښوونکی د شعر د مفهوم په اړه په تفصيل سره څرګندونې وکړي .<br>- ښوونکی دې د لوست لنډيز زده کوونکو ته و وايي.<br>- ښوونکی دې د څو لنډو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه وکړي .<br>- ښوونکی دې د کتاب کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل درسي ساعت کې يې له ځانه سره راوړي . | - څوزده کوونکي دې بيتونه معنا کړي اونور زده کوونکي دې د بيتونومعنا ته غوږ و نيسي.<br>_ زده کوونکي غوږ نيسي<br>- زده کوونکي دې پوښتنوته ځوابونه ووايي<br>- زده کوونکي دې کورنۍ دنده واخلي . | |

| | |
|---|---|
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | |
| د فعاليتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | |

## اضافي معلومات

د سره صليب د نړيوالې کميټې له بنسټ ايښودونکو څخه يو هم هانري دونانت دی .د ۱۸۵۹م کال د جون په ۲۴ نيټه چې فرانسوي او اطريشي عسکر و دايتاليا په شمال کې د سانفرينو په ښار کې جګړه کوله ،په ۱٦ ساعتونو کې ۴۰ زره کسان مړه او ټپيان شول .

په همدې ورځ ماښام هانري دونانت چې د سوداګري کارونه يې کول، دې ځای ته ورسيد. دا صحنه يې وليدله چې ټپيان بې علاجه پراته وو. دونانت ورسره طبي مرستې وکړې، خلک پرې خوشحاله شول . کله چې بيرته اطريش ته لاړ، د ۱۸٦۲ م کال د نوامبر په مياشت کې يې يو کتاب وليکه چې د سالفر ينو په نوم يادیده.په دې کتاب کې يې د يو ترون د کيدلو وړانديز کړی و.

دونانت دغه کتاب سياست مدارانو ته وليږه. په ۱۸٦۳م کال د فبروري په مياشت کې د سويس دولت د عامه هوساينې د ټولنې په نوم د يوې خير يې موسسې وړانديز وکړ چې د دونانت نظريه عملي شي.

د دغه کمسيون په غړو کې ګوستاف، موانيه، ګيوم هانري د وفور، لويې ابيه او تيودور وو.

دوی د فبروري په ۱۷ سره وليدل او د نړيوالې کميټې بنسټ يې کېښود.

لومړی نظريه د سره صليب د جوړيدو سبب شوه او بيا وروسته پدې اړه نړيوال قانون جوړ شو. په دغه کميته کې ۱٦ هېوادونو او ۴ بشر پالو مو سسوګډون وکړ. په ۱۹٦۳ کال د اکتوبر په ۲۴ نيټه دغې موسسې خپل استازی په نړيوال

کنفرانس کې د ګډون لپاره ولیږه اوپه ځمکه د سره صلیب نړیوال نښان تصویب شو او د سور صلیب د یوې خیریې موسسې په نوم یادشو.
په ۱۹۲۴ م کال یې په کار پیل وکړ او ۱۹۵۲ کال کې یې تګ لاره جوړه او تصویب شوه. په ۱۹۳۴ م کال د افغانستان حکومت د دغې تک لارې په لیدلو سره د سرې میاشتې بنسټ کیښود. دغه ټولنه د افغاني سرې میاشتې ټولنې په نوم ونومول شوه.
او د ۱۹۵۵ کال د نوامبر په ۱۱ نیټه د صلیب احمرد غړي په توګه وپیژندل شوه. له هغه وخت څخه تر اوسه پورې په نړیواله کچه شهرت لري .
افغاني سره میاشت اووه ګونې نړیوال قوانین لري (بشریت، غیر پلوي توب، بې طرفي، ازادي، رضاکارانه کارونه ،یووالی او یورنګي او نړیوالې هڅې) د افغاني سرې میاشتې په غړیتوب کې د بېلابېلو هېوادونو یو شمېر ملکي او عسکري مامورین، سوداګر، روشنفکران محصلین، زده کوونکي ،ځوانان او رضاکاران شامل دي . سره میاشت د خپلو مقررو او اساساتو سره سم د جګړو او طبیعي افتونو له مصیبت ځپلو سره مرسته کوي . دزلزلې، قحطۍ او وچکالۍ په وخت کې یې له هېوادوالو سره مرستې کړي او کوي یې .
دغه راز په هغو ځایونو کې چې سیلابونو ورته زیانونه اړولي وي .تر خپله توانه مرسته وروړي او په هغوی یې ویشي. افغاني سره میاشت د هرولایت لپاره د مرستې مالونه او پیسې په پام کې نیسي او ورته یې تیاروي چې نا څاپي پیښنو کې ورته ځان ورسوي . د افغاني سرې میاشتې مرستې د هر والي په مرسته چې د ټولنې افتخاري غړیتوب لري ،د هغه ولایت د سرې میاشتې د ټولنې د غړو په همکارۍ ویشل کیږي .
افغاني سره میاشت په کابل ښار او ولایتونو کې د مرستو څه د پاسه ۲۵ مرکزونه لري او د مرکزي روغتون په نوم یو روغتون هم لري چې په سالنګ واټ کې دی . یو روغتون د کندز ولایت د امام صاحب په ولسوالۍ کې لري چې روغتیایي خدمتونه سرته رسوي . په ټولیزه برخه کې افغاني سره میاشت د هېواد د مرکز او ولایتونو د مرستونونو له لارې یتیمانو ،سپین ږیرو او معلولینو سره مرسته کوي .هغوی اعا شه کوي او دشپې تیرولو ځای یې تر خپله امکان برابروي او د دغو موسسو له لارې بشري مرستې کوي .
اوس افغاني سره میاشت څلور مرستونونه لري چې د کابل، ننګرهار، کندهار او هرات په ولایتونو کې دي او دڅه د پاسه ۱۵۰۰ تنو سره مرسته کوي .
د مرستونونو په موخه له بې وزلو هېوادوالو سره مرسته کوي .
په روغتیایي برخو کې: افغاني سره میاشت د خلکو لپاره خدمت کوي . روغتیایي خدمتونه یې هم سرته رسولي او له پامه یې نه دي غور ځولی.
دغه مرکز څه د پاسه ۲۵ روغتیایي مرکزونه لري . په دغو مرکزونو کې دوه روغتونونه هم شامل دي . په دغو مرکزونو کې لومړنۍ مرستې، پیچکاري، پانسمان، واکسین او نورې مرستې کیږي چې دغه مرستې د نړۍ وال سره صلیب او سرې میاشتې له خوا کیږي . افغاني سره میاشت د بشر دوستۍ د مفکورې پر بنسټ مالي مرستو ته اړتیا لري . دغه مرستې له بهرنیو نړیوالو خیریه موسسو، افغاني کومک کوونکو او د لاټري له لارې ترلاسه کوي .
د لاټري سابقه یې له ۲٦ کلونو څخه زیاته ده چې نن سبا یې زیات پرمختګ کړی دی . دغه راز نوره پانګه دغړیتوب له ونډو، حکومتي پیسو، سوغاتي مالونو، د کورنیو او بهرنیو نیکو او بشردوستو اشخاصو له مرستو او سوغاتونو، د ګمرکي صادراتو او وارداتو له یو فیصد ورکړې څخه برابر وي .دغه راز د نندار تونوله ګټې اودغه راز دسرې میاشتې د منقولو او غیر منقولو شتمنیو له کرایو څخه .،د کنسرتونو او ننداړو له عوایدو اود مامورینو له هدیې څخه پوره کیږي .

افغاني سره میاشت له بهرنۍ نړۍ سره هم خپلې اړیکې لري چې دغې ټولنې په تیرو کلونو کې د سونامۍ مصیبت ځپلو سره مرسته وکړه او نور هم داسې مرستو ته ژمنه ده .
افغاني سره میاشت ټولنه یوه او نیزه خپرونه هم لري چې سره میاشت نومیږي . او یوه درې میاشتنۍ مجله هم لري چې په پښتو او دري ژبو باندې خپرونې لري .
دغه راز په (۱۵) ورځو کې رادیویي پروګرام لري چې د خپرونو له لارې د دغې ټولنې اهداف توزیع او کومکونو ته یې انعکاس ورکول کیږي .
دغه ټولنه هر کال د ثور په اتلسمه نیټه دسره صلیب نړیواله ورځ لمانځي.
دغه راز دغه ورځ د هانري د ونانت د زیږیدلو له ورځې سره هم برابره ده .په دغه ورځ باندې د سرې میاشتې ټولنه ځانګړې خپرونې کوي . د سرې میاشتې ټولنه یوه ناپیلې ټولنه ده چې د چاپونې پوره ازادي لري . رضا کارانه خدمتونه کوي او په هیواد کې د یوالي غوښتونکي ده.
ماخذونه:


معلومات مختصر پیرامون جمعیت افغاني سره میاشت، کمیته بین المللي صلیب احمر.
۱. د سره صلیب نړیواله کمیته، ICRC
۲. اساسنامه جمعیت افغاني سره میاشت ۱۳٦۸ کابل
۳. هانري دونانت، یادونه، د احمدزي لیکنه

# پنځلسم لوست

## د تدريس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | هوسۍ او کیږدۍ | |
| | - زده کونکي د هوسۍ او کېږدۍ د کېسې د مرام په هکله د ښوونيزې او روزنيزې موخې په رڼا کې معلومات پيدا کړي،<br>- زده کوونکي د داسې کېسو د راټولولو په باب هڅه وکړي،<br>- زده کوونکي دد غې کيسې ارزښتمن لغات په مناسبو جملو کې وکاروي،<br>- زده کوونکي د اړوند لوست د ښې زده کړې لپاره له ښو مهارتونو څخه کار واخلي . | |
| ۳- د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اوريدل، سوال او ځواب، ډله ييز کار، يوکسيزکار | |
| ۴- د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشير | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د يادښت کتابچه | |
| ٦- د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضري اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقيقې |
| ۷_د انګيزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې په شفاهي توګه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي .<br>- دکيسواوريدل اولوستل موږ ته څه ګټه لري ؟.<br>- کله موکومه تاريخي کيسه اوريدلې ده ؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - ښوونکی دې اړوند درس په لوړاو مناسب غږ ولولي.<br>- ښوونکی دې یو زده کوونکی د ټولګې مخې ته راوغواړي. چې د اړوند کېسې په باب څرګند ونې وکړي .<br>- څوزده کوونکي په ټولګي کې پورته کړئ چې په حیواناتوباندې دزړه سوي په هکله خبرې وکړي .<br>- که چیرې کوم زده کوونکي په کوم وخت کې په کوم حیوان زړه سوځولی وي دهغه کیسه دې وکړي .<br>- له زده کوونکو دې پوښتنه وشي چې له دې وروسته په دحیواناتواوالوتونکوپه هکله څه چلند وکړي ؟<br>_ښوونکی دې زده کوونکوته دکتاب له مخې کورنۍ دنده ورکړي . | - زده کوونکي دې غوږ ونیسي او کورنۍ دنده دې وښيي<br>-زده کوونکي دې دښوونکي لوستلوته غوږ ونیسي اود ښوونکی لوستلوته دې پاملرنه وکړي .<br>_زده کوونکي دې دکیسې په اړه خپل نظر څرګند کړي اونور زده کوونکي دې غوږ ونیسي .<br>- نوردې ورته غوږ ونیسي .<br>- نوردې ورته غوږ ونیسي .<br>_ زده کوونکي د ځواب ویلو په خاطر لاسونه پورته کوي.<br>- زده کوونکي دې کورنۍ دنده یاداشت کړي اوپه کورکې دې بشپړه کړي . | ۳۵ دقیقې |
| - د متن د ستونزمنو برخو روښانول | - | |
| - د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | - | |

## اضافي معلومات

که چېرې د پښتو ژبې د شالید تاریخچه وڅېړل شي ،څرګندیږي چې پښتانه د پناه ور وړونکو خلکو د سر او مال په بیه ساتنه او خدمت کوي .د مثال په توګه په دویمه نړیواله جګړه کې کله چې المانیان په افغانستان کې پاتې شـــول، روسانو لاس تړلي شوروي ته بوول ،خو افغانانو المانیان سلامت المانیانو ته وسپارل چې دا دوستي لاتر اوسه پورې د افغان او المان تر منځ پاتې ده، یو بل د پخوانیو دوستانو په نوم پېژني. دغه راز د هوسۍ او کیږدۍ کیسه هم ترننـــه دیادولو وړ ده.

همداشان د قومونو ترمنځ د جنګونو په وخت کې که څوک او یا کوم ولس چاته پناه وروړي ،د ژوند تر پایه یې د سر او مال په بیه ساتي. د هیچا تېري ته یې نه ورکوي .

کله چې صافیان یا غي شوي وو،د حکومت الوتکو امر وکړ چې له عملیاتو څخه کار واخلي .همدا وچې د جنرال ګلبهار ځاځي الوتکه ولویده .د صافیانو قوم د تورو او چړوسره یو ځای د ګلبهار ځاځي په حلالولوپسې راغلل ،د ده په مرۍ یې چاړه را کشوله چې په دې وخت کې قوم راورسید .صافیا نو ته یې وویل چې له یوې خوا الوتکه زموږ په خاوره کې رالوېدلې ده، د بلې خوا پیلوټ موږ ته پناه راوړې ده. موږ یې له هر ډول تېرې څخه ژغورو، همداوه چې ګلبهار ځاځی یې پخپله غیږ کې ژوندی وساته او روغ رمټ یې حکومت ته وسپاره. دغه کیسه د افغانستان په اردو کې ژوندۍ ده.

موخذ: دسیدمحمودکارګر له یاداشتونو څخه

# شپاړسم لوست

## د تدريس وخت : ۳ ساعته

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرليکونه |
| --- | --- | --- |
| | د رنګونو د پيژندنې په لړ کې د رنګونو په باب خبرې | ۱- د لوست موضوع |
| | زده کوونکي به د رنګونو په باب ډېر معلومات تر لاسه کړي،<br>زده کوونکي به د رنګونو په توپيراو څرنګوالي وپوهېږي،<br>د متن ليکل او لوستل به زده کړي،<br>زده کوونکي به د نوو لغتونو په معنا پوه او په جملو کې د هغو په کارولو وپوهېږي،<br>زده کوونکي به د خبرو اترو تمرين وکړ ي،<br>زده کوونکي به ډېرو زده کړو ته وهڅول شي،<br>زده کوونکي به د رنګونو په ارزښتونو وپوهېږي . | ۲- د زده کړې پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي موخې |
| | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه | ۲- د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې |
| | کتابونه، اړوند مجلې، اخبارونه او نور | ۴- د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، ليکلی ارزونه، سوال او ځواب ډيالوګ | ۵- د ارزونې لارې اووسيلې |
| ۶ دقيقې | سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخيستل، د زاړه او نوي درس ترمنځ د اړيکو ټينګول<br>د کورنۍ دندې په بېلا بېلو بڼو کتنه. | ۶- د زده کړې او تدريس فعاليتونه |
| ۴ دقيقې | رنګونه زموږ په ژوندکې څه ارز ښت لري ؟<br>که رنګونه نه وا ی دنيا  به څه ډول وه ؟ | ۷- د انګېزې رامنځ ته کول |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ــ له احوال پوښتنې وروسته کورنۍ دنده ګوري اودڅوپوښتنو په کولوسره دتیر لوست ارزونه کوي.<br>ــ د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي، بیا د اړوند لوست متن په لوړ مناسب غږ لولي.<br>زده کوونکي په ډلو ووېشي او هرې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې په چوپتیا د یو بل په مرسته لوست ولولي. د هغو څارنه وکړي.<br>ښوونکی دې درې تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي ،د ټولګي پر مخ کې دې د فزیکي او کیمیاوي رنګونو په باب معلومات وړاندې کړي .<br>– څوزده کوونکي تختې ته پورته کړئ چې دلوست په مفهوم خبرې وکړي .<br>– په څوزده کوونکوووایئ چې له لوست څخه یې څه نتیجه ترلاسه کړه ؟<br>څو لغتونه په تخته ولیکي تر څو زده کوونکي یې په جملو کې وکار وي . | ــ زده کوونکي غوږ نیسي او کورنۍ دنده لولي .<br><br>ــزده کوونکي متن ته ګوري اودرس ته غوږ نیسي.<br>ــزده کوونکي د یوه او بل په مرسته لوست زده کوي او د ستونزو په باب له یوه بل څخه پوښتنې کوي .<br><br>– درې ز ده کوونکي درنګونو په اړه خبرې کوي اونورزده کوونکي ورته غوږ نیسي.اوهم دې زده کوونکي په کتابچو کې د زده کړې وړ معلوماتونه ولیکي.<br>– نور زده کوونکي غوږ نیسي.<br><br>– نور زده کوونکي غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي لغتونه په جملوکې کاروي . | ۳۵ دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | ۱ــ څېړنې : (تحقیقات)<br>۲ــ علم : پوهنه<br>۳ــ رنګ : رنګ، شکل، صفت | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | | |

## اضافي معلومات

د رنګونو پېژندنه، د رنګونو په باب کې خبرې

که چېرې د رنګونو د پېژندلو په باب ژورې څېړنې وشي، څرګندېږي چې رنګونه د فزیک د علم له مخې اوه ډوله دي، لکه:

۱ـ قیرمیزي ۲ـ نارنجي ۳ـ ژېړ ۴ـ شین ۵ـ آبي ٦ـ نیلي ۷ـ بېنفش

د کیمیا د علم له مخې د رنګو د جوړښت لړۍ په درېو برخو وېشل شوی :

۱ـ اصلي رنګونه په درې ډوله دي چې په طبیعت کې موجود دي، لکه: الف: سور، ب : ابي، د: ژېړ

۲ـ فرعي رنګونه په شپږ ډوله دي، لکه :

۱ـ ابي ۲ـ سور ۳ـ بېنفش ۴ـ ژېړ ۵ـ شین ٦ـ نارنجي .

۳ـ خنثی رنګونه په درې ډوله په طبیعت کې موجود دي، لکه :

۱ـ سپین ۲ـ تور ۳ـ نسواري.

۱ـ ټول کیمیاوي رنګونه د دریو اصلي رنګونو څخه جوړېږي .

۲ـ اصلي رنګونه د نورو رنګونو څخه نه شي جوړېدی.

د رنګونو د ترکیب جوړښت :

۱ـ سور + ابي = بېنفش

۲ـ ژېړ + ابي = شین

۳ـ ژېړ + سور = نارنجي

که چېرې درې اصلي رنګونه له یوه منشور څخه تېر شي ،د فزیک دعلم له مخې اووه ډوله رنګونه منځ ته راځي.

که ابي رنګ دوه چنده له سره رنګ سره یو ځای شي، نارنجي رنګ په لاس راځي.

که ابي رنګ دوه چنده له ژېړ رنګ سره یو ځای شي، شین ابي جوړېږي .

که سپین رنګ له تور رنګ سره یو ځای شي، خړ رنګ منځ ته راځي.

سپین، تور او خړ رنګونه د خنثی رنګونو په نوم یادېږي.

ګل مې په لاس درته نیولی ـ یا مې ګل واخله یا رخصت راکړه چې ځمه

ګل مې په لاس کې مړاوې کېږي ـ پردی وطن دی زه یې چاته ونیسمه

ګلان په خپل وطن شنه کېږي ـ ما په پردې وطن کرلي وچ به شینه

که د پښتو ژبې ادبیاتو ته ځیر شو، څرګندېږي چې رنګونه په مختلفو لهجو کې په بېلو بېلو یادشوی دي، لکه :سور، نېمه سور، ډېر سور، الواني، ارغواني، سوربخون، سپین، سپین چک، ښه سپین، ډېر سپین، تور، توربخن، ښه تور، ډېر تور، ژېړ، ژېړ بخون، ښه ژېړ، ډېر ژېړ.

د رنګونو فلسفه ډول ډول سایکلوجیکي اروا پوهنیزې اغېزې لري.

۱ــ سور رنګ : دا رنګ ګرم مزاجه دی او په لیدلو سره یې په ډېرو خلکو کې د فشار د لوړوالي او د زړه د ډوبېدلو سبب ګرځي.

۲ــ نارنجي: دا رنګ د سره رنګ په شان ګرم مزاجه خصوصیت لري، مګر بیا یې هم ډېر خلک خوښوي او په لیدلو سره یې د ګرانښت او صمیمیت احساس کوي.

۳ــ ژېړ: دا رنګ هم د سره او نارنجي په څېر تود مزاجه او صمیمي دی . دغه رنګ د سره او نارنجي نه زیات مینه وال او علاقمندان لري او له همدې امله په تیاره او د کمې رڼا لرونکو تالارونو او سالونونو په منځ کې ډېر لیدل کېږي.

۴ــ شین: اراموونکی رنګ دی ،دا رنګ د ابي په پرتله ډېر ښه اړخونه لري . دا رنګ زیاتره د ناستي او خوب په کوټو کې کارول کېږي . دا رنګ د روغتونونو، کارځایونو لپاره ډېر مناسب او غوره رنګ دی .

۵ــ ابي: دا رنګ د ارامۍ او اسودګۍ احساس له ځانه سره لري . دا رنګ د خوب د کوټې لپاره مناسب دی ،مګر د پخلنځي د خونې لپاره نه، ځکه د انسان د اشتها د کموالي سبب ګرځي.

٦ــ بنفش : دا یو فریب ورکوونکی رنګ دی چې د ماشومانو ډېر خوښېږي، مګر سپین ږېري یې چندانې نه خوښوي که دغه د ماشومانو د خوب او زده کړې په ځایونو کې وکارول شي بده به نه وي.

۷ــ تور رنګ : دا رنګ د خواشینۍ سمبول دی او په لیدو سره یې د زړه غمګیني ځپې راځي او د ظلمت مفهوم ترې اخیستل کېږي .

۸ــ خړ رنګ : دا رنګ د خړ او برګ حال مفهوم هم افاده کوي او زیاتره طبیعي رنګ ته ورته رنګ ښکاري . دا رنګ هم حواس ارامه ساتي چې زیاتره د سپین ږیرو او سپین سرو ډېر خوښېږي.

۹ــ سپین رنګ : دا رنګ هم مثبتې اغېزې لري او د زړه د صافوالي او سولې مفهوم افاده کوي . که تور رنګ له سپین سره جوړه شي، نو بیا دواړه په ګډه سره د دې وس لري چې اراموونکې ښکلا تولید کړي او اراموونکې اغېزې ولري .

۱۰ــ ګلابي: دا رنګ د زرغون په تناسب زیات خوښوونکی دی او دا ټول د انسان په روحیاتو خپلې اغېزې لري .


ماخذونه۱: ــ د ارت او هنر ځانګې د لومړي، دویم، دریم، څلورم او پنځم ټولګي پخواني او اوسني کتابونه

۲ــ ((اموزش هنر)) د ایران هېواد د دریم ټولګي درسي کتاب.

۳ــ هنرمجله د افغانستان د هنرمندانو د ټولنې خپرونه

۴ــ فزیک

۵ــ کیمیا

٦ــ صنعتي کیمیا

# اوولسم لوست

## دتدريس وخت :  ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | د ليک ډولونه | |
| ۲– د زده کړې پوهنيزې، ذهنيتي او مهارتي موخې | ـ زده کوونکې د ليک ډولونه وپېژني،<br>ـ په پښتو ژبه لوستل، ليکل او خبرې وکړی شي،<br>ـ له لوستلو، ليکلو او د ليک له ډولونو څخه په ژوند کې ګټه واخلي،<br>ـ د ليک په ارزښت او مفهوم پوه شي. | |
| ۳– د تدريس لارې | لوستل، ليکل، خبرې کول . | |
| ۴– د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، قلم، تخته او تباشير | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسيلې | شفاهي، تحريري او د ښوونکي د يادښت کتابچه | |
| ٦– د زړده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، احوال پوښتنه، د کورني کار ليدل، د تېر لوست ارزيابي | ٦ دقيقې |
| ۷– انګېزيي پوښتنې | څوک وايي چې ليک څه ته وايي؟<br>په تاسو کې چا کوم دوست ته ليک لېږلی دی؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی یو ځل متن په لوړ مناسب اواز وایي، خو د ویلو په وخت کې ټول زده کوونکي تر څارنې لاندې وي . | ـ زده کوونکي کورنی کار راوړی، هغه وایي او ځوابونه ورکوي . | ۳۵ دقیقې |
| ـ بیا په زده کوونکو متن په چوپه خوله وایي او ښوونکی څارنه کوي چې ټول زده کوونکي په کې برخه واخلي. | ـ ښوونکی متن په لوړ غږ لولي اونور زده کوونکي غوږ نیسي. | |
| ـ ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې مشکل ځایونه په پنسل په نښه کړي .د نورو زده کوونکو د لوستلو په وخت کې ورته پاملرنه وکړي . | ـ زده کوونکي متن په چوپه خوله وایي . | |
| ـ په څو زده کوونکو په وار سره د متن یو یو پاراګراف وایي، ښوونکی فردي لیاقت په پام کې نیسي او ټولو زده کوونکو ته په وار سره وخت ورکوي . | ـ زده کوونکي د کلمو تلفظ او د جملو ترکیب ته متوجې وي اومشکل کلمات په نښه کوي . | |
| ـ په زده کوونکو باندې د متن ۴ اویا ۶ لغتونه په تخته لیکي او نورزده کوونکي یې په کتابچو کې لیکي. او په جملو کې یې کاروي . | ـ زده کوونکي په وارسره دمتن یویوپاراګراف په لوړ غږ لولي اونور غوږ نیسي . | |
| ـ څو زده کوونکي تختې ته راغواړي چې د لیکونو د اهمیت په هکله خبرې کوي. | | |
| ـ څو زده کوونکي پورته کوي چې په وار سره یو ملګري یا پلار ته په شفاهي ډول یو لیک وایي. | – زده کوونکي دلیکونو په اړه خبرې کوي . | |
| ـ یو زده کوونکی پورته کوي چې هغه د کتاب له مخې لیک وایي بل زده کوونکی د هغه تېروتنه سموي. ښوونکی څارنه کوي . | ـ نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي او تېروتنو ته متوجې وي .که چېرې د هغه مقابل زده کوونکي یې غلطي ونه نیسي، دا نور زده کوونکي پرې غږ کولای شي، خو د ښوونکي له اشارې او نوبت وروسته .<br>ـ زده کوونکي غوږ نیسي . | |
| ـ څو زده کوونکي په وار سره پورته کوي چې له دې وروسته دوستانوته د لیک د لېږلو او لیکلو په هکله په خپله خبرې کوي. | ـ زده کوونکي غوږ نیسي. | |
| ـ ښوونکی د لوست لنډیز یو ځل وایي. | زده کوونکي غوږ نیسي . | |
| ـ ښوونکی د څو زده کوونکو ځنې د پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه کوي او د څارنې په کولو سره صنفي لیاقت په پام کې نیسي. | ـ زده کوونکي پوښتنو ته ځواب وایي. | |
| ـ د لوست په پای کې که چېرې وخت وي ،کولای شي چې په زده کوونکو د لوستلو یا لیکلو کوم فعالیت اجرای کړي . | ـ زده کوونکي په کورنۍ دنده ځان پوهوي او په بل پښتو درسي ساعت ته یې راوړي . | |

| | | |
|---|---|---|
| ــ په پای کې د متن له مخې کورنۍ دنده ورکوي . | | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | معیاري شخصي لیک: هغه لیک دی چې مشکلې کلمې په کې لیکل شوی وي او دود وي . | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | | |

## اضافي معلومات

مور د لیکونو د متن په هکله لوستي دي چې لیکونه په عمومي توګه په دوه ډوله دي، رسمي لیکونه او شخصي لیکونه.

شخصي لیکونه:

شخصي لیکونه لکه څنګه چې له نوم څخه یې ښکاري، د اشخاصو ترمنځ د بېلا بېلو علاقو او اړیکو له مخې لیکل کېږي .

په دې ډول لیکنو کې خلک د یو څه غوښتنه، سپارښتنه او احوال پوښتنه او یا خبرول کوي او ټولې ۶ برخې لري چې د کتاب په متن کې راغلي دي .

پخوا به چې چا کوم دوست ته لیک لیکلو، نو د هغه لیک مقدمه به ډېره اوږده او لیک به دومره اوږد شوی و چې اصلي مطلب به په کې ورک و، اوس هغه دود له منځه تللی دی، اوس په شخصي لیکنو کې یوازې په همدغه ۶ ضروري برخو کې چې په متن کې روښانه شوي، په لنډه توګه خپل مقصد بیانوي او بس .

بل رسمي لیکونه دي : رسمي لیکونه د دولتي ادارو ترمنځ مکتوبونه، عریضې، استعلامونه او پیشنهادونه دي چې مکتوبونه په رسمي ډول لېږل کېږي او هغه هم یا د پوستې په واسطه او یا د کوم مؤظف شخص په واسطه او له تسلیمېدونکي شخص څخه د رسیداتو په کتاب کې لاسلیک اخلي.

رسمي لیکنې په پاکټ کې اچوي .د پاکټ او لیک دپاسه د لیک نمبر او تاریخ، د لېږونکي اداري نوم او د ورلېږونکي اداري نوم لیکل شوی وي او همدارنګه د هغې ادارې د ریاست او وزارت نوم لیکل کېږي . زیاتره ډېر محرم اسناد په پسته کې لېږل کېږي.

پیشنهاد هم نمبر لري، خو د مؤظف شخص په واسطه معمولا لوړ مقام ته لیکل کېږي چې د کومې موضوع په هکله هدایت غواړي.

استعلام هم د یوه شخص په واسطه د یوې موضوع په اړوند له بلې اداري څخه د ځان د خبرولو او پوښتنې په هکله لیکل کېږي.

عریضه معمولا په انفرادي ډول د اشخاصو له خوا یو مقام ته لیکل کېږي چې د یوې رسمي موضوع او کار پیل بلل کېږي .

په عریضه کې معمولا له لوړ مقام څخه امر اخیستل کېږي چې کښته اداري د امر په پام کې نیولو سره کار وکړي .

په اوسنیو وختونو کې له کوم وخت څخه چې د ګرځنده او نورو تېلفونونو اسانتیاوې رامنځته شوي دي د شخصي لیکنو دود یې له منځه وړی دی، پخوا چې به خلکو شخصي لیکونه یا د اشخاصو په واسطه او یا د پوستو له لارې لېږل، اوس خپلې اړتیاوې د تېلفونونو له لارې سرته رسوي .

اوس د تېلفونونو ترڅنګ د انټرنېټ له لارې د برېښنا لیکونو اسانتیاوې رامنځته شوي . د برېښنا لیک په مټ خپل لیکونه اوانځورونه لېږدوي .

دغه راز په دولتي ادارو کې هم ډېر کارونه او مکتوبونه د برېښنا لیک په مټ سرته رسیږي چې په دغو کارونو سره د زیات وخت د تېرېدو مخه نیول کېږي.

مور ته لازمه ده چې په شخصي او رسمي لیکونو کې د اضافي لیکنو او معترضه جملو له لیکلو څخه تېر شو، ځکه د هغو لپاره اړتیا نشته او بله دا چې د وخت ضایع کېدو سبب کېږي، نو باید په لنډ ډول خپل مقصد ورته ولیکو.

پخوا به په رسمي عریضو کې د هر مقام لپاره بېلا بېل القاب لیکل کېدل او په مستقیم ډول به د هماغه وزارت یا ریاست د مقام نوم لیکل کېده او خپل مطلب او غوښتنه به یې وړاندې کوله ، خو باید یو ټکي ته هم متوجه شو چې اوس د عریضې په ښۍ څنډه د عارض نوم او ادرس لیکل کېږي او په اخر کې بیا د عارض لاسلیک او تاریخ لیکي چې مقام عریضه کوونکی په لومړي وخت کې وپېژني.

# اتلسم لوست

## د تدريس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۱− د لوست موضوع | د ازادۍ پیغام | |
| ۲− د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنتي موخې | ـ د دې لوست د زده کړې په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:<br>ـ د لوست جملې په سمه او روانه توګه ولولي او ځنې جملې يې د املا په توګه وليکي،<br>ـ د ازادۍ په معنا، مطلب او ارزښت باندې وپوهېږي،<br>ـ د خپلې ازادۍ په شان د نورو خلکو او ټولو ژونديو موجوداتو د ازادۍ داهميت په هکله ورسره فکر پيدا شي. | |
| ۳− د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اورېدل. | |
| ۴− د تدريس وسيلې او مرستندويه توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشير، د امکان په صورت کې د ازادۍ د لمانځلو د غونډې انځورونه | |
| ۵− د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د يادښت کتابچه | |
| ۶− د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، احوال پوښتنه، د حاضري اخيستل، د غيرحاضرو زده کوونکو پوښتنه، ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه | ۶ دقيقې |
| ۷− د انګېزې رامنځ ته کول | ـ پخوا له دې چې ښوونکی د لوست په تدريس پيل وکړي لاندې او هغو ته ورته څو پوښتنې دې له زده کوونکو څخه وکړي چې هغوی د نوي لوست په هکله سوچ وکړي او زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>ـ تاسې ازادي څه ته واياست؟<br>ـ که يو وګړی، ټولنه يا هېواد ازادي ونه لري ،له کومو ستونزو سره به مخامخ وي؟<br>ـ څوک د ازادۍ د ګټو په هکله څه ويلای شي؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ــ ښاغلی ښوونکی دې له مقدماتي فعالیتونو لکه : دحاضرۍ له اخیستلو څخه وروسته د لوست په هکله انګېزه یې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي . او بیا دې د لوست عنوان په تخته ولیکي.<br>ــد نوی لوست متن دې په لوړ او مناسب اواز سره ولوستل شي، زده کوونکي دې په ځیر سره اورېدلو ته تشویق شي.<br>ــ د نوي لوست لغتونه دې له معناوو سره په تخته ولیکل شي.<br>ــ زده کوونکي دې وهڅول شي چې د نوي لوست متن په چوپتیا سره یو ځل ولولي، بیا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره یو یو پاراګراف په لوړ او مناسب اواز سره ولولي ،نور دې خپلو کتابونو ته ځیر شي او غوږ دې ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې د لاندې لغتونو معناګانې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په مناسبو جملو کې دې وکاروي .<br>وګړي، ټولنه، بڼ، سوداګر، وخت، سوغات .<br>ــ څو زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ته په وار سره د خپل نظر له مخې ځوابونه ووایي.<br>–که یوه ټولنه ازادي ونه لري له کومو ستونزو سره به مخ شي؟<br>ــ زده کوونکي دې د ازادۍ د ارزښت، معنا ، مفهوم او ګټو په هکله خپل معلومات په څو کرښو کې ولیکي. دغه کار دې په خپلو وړو ګروپونو کې سرته ورسوي او بیا دې په وار سره یو تن د هر ګروپ په استازیتوب په لوړ او مناسب اواز سره د ټولګیوالو په وړاندې ولولي .<br>ــ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي له هرې ډلې څخه دې څو تنه په وار سره د بلې ډلې له یوه یوه تن څخه د هغه د مطالعې او نورو درسي بوختیاوو په هکله پوښتنې وکړي او بیا دې د باالمقابل لورې زده کوونکي هم همداسې وکړي .<br>ــ څو زده کوونکي دې وهڅول شي چې په وار سره یو بل ته یو، یو پاراګراف له متن څخه ووایي او هغه بل دې د پاراګراف مطلب په خپله ژبه ووایي. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي درناوی وکړي، پوښتنو ته دې ځوابونه ووایي ، تختې او نوي لوست ته دې ځیر شي.<br>ــ زده کوونکي دې نوي لوست ته غوږ ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې نوي لغتونه له معناوو سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ــ زده کوونکي دې د نوي لوست متن په چوپتیا سره ولولي او پاتې فعالیت دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم سرته ورسوي .<br>ــ زده کوونکي دې د لغتونو معناګانې په خپلو کتابچو کې په مناسبو جملو کې وکاروي .<br>ــ څو زده کوونکي دې په وارسره ځواب ووایي.<br>ــ زده کوونکي په وړو ګروپونو کې د ښوونکي له لارښوونې سره سم دغه فعالیت سرته ورسوي .<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت سرته ورسوي .<br>ــ یو زده کوونکی دې یو پاراګراف لولي، بل زده کوونکی دې سمدلاسه لنډ مطلب په خپله ژبه ووایي.<br>ــ درې یا څلور تنه زده کوونکي دې په وار سره | ۳۵<br>دقیقې |

| | | |
|---|---|---|
| ــ څو زده کوونکي دې وهڅول شي چې په هېواد کې د خپلواکۍ د اتلانو په هکله خبرې وکړي.<br><br>ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راوغوښتل شي او د خپلواکۍ د ورځې د ارزښتونو په هکله دې خبرې وکړي.<br><br>ــ ښوونکی دې د لوست لنډيز زده کوونکو ته ووايي.<br>ــ ښوونکی دې د څو پوښتنو په طرحه کولو سره د لوست د زده کړې ارزونه وکړي .<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې پوښتنه ترې وکړي. | د هېواد د خپلواکۍ د اتلانو نومونه واخلي او د کارنامو په هکله دې خبرې وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې ګوته پورته کړي او د ښوونکي له لارښونې سره سم دې يو، يو تن د ټولګي مخې ته راشي او د ازادۍ د ارزښت په هکله دې خپل نظر ووايي .<br><br>ــ زده کوونکي دې غوږ ونيسي.<br><br>ــ زده کوونکي دې ځوابونه ووايي.<br>ــ زده کوونکي دې بلې ورځې ته کورنۍ دنده راوړي. | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | د سوداګر طوطي او د ځنګله طوطيانو خبرې نه شوی کولای ،خو په دې توګه  يې د ازادۍ د ارزښت او ګټو په هکله درس نورو ته ورکړی دی . | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته  ځوابونه | ــ که يوه ټولنه ازادي ونه لري، نو هر وخت به د غلامانو په شان ژوند کوي، ملي شتمني، واک، اختيار او ټول کړه وړه به يې د نورو په اختيار کې وي او د دوی مادي او معنوي شتمني او قوت به د نورو په اختيار کې وي . | |

## اضافي معلومات

ازادي د الله ﷻ هغه لوی نعمت دی چې د انسان په ژوند کې تر دې پورته نعمتونه به ډېر لږ وي . که څوک ازادي ونه لري ،د خپلو مادي ،ملي او معنوي امکاناتو څخه به هېڅ ډول ګټه نشي اخيستلای . د دنيا زورواکان د تاريخ په اوږدو کې چې په هر ځای او هر ملک کې واک ته رسېدلي، نو بيا يې په يوه يا بله بڼه د نورو د اسارت نيت کړی، تر څو له هغوی څخه په خپله ګټه کار واخلي. د هغوی د ملکونو شتمني لوټ کړي، وربانديې حکومت وکړي او حتی نسل يې ورک کړي چې د دې شوم مقصد لپاره زموږ په خاوره هم دتاريخ په اوږدوکې څو، څو ځله داسې يرغلونه شوي دي ،لکه : سکندر، مغلو، ايرانيانو، د هغه وخت انګرېزانو او د هغه وخت روسانو او نورو چې په نابللې توګه يې په پوځي لباس  کې زموږ په هيوادباندې بريدونه کړي دي ، خو دا چې زموږ غيرتي او مسلمان ملت د ازادۍ په ارزښت ډېر ښه پوهېده او د ازادۍ خوښوونې حس يې په ختہ کې اغږل شوی و، د ډېرو قربانيو په ورکولو سره يې خپله ازادي ترلاسه کړې او هر يرغلګر يې په شا ځغلولی دی . موږ ته يې د ازادۍ درس راکړی او د ا خاوره يې موږ ته امانت سپارلې ده چې موږ هم بايد د خپلې خاورې د ازادۍ او استقلال لپاره هر هغه څه چې له توانه مو پوره وي ،وکړوچې خپل اسلامي او افغاني پورمو ادا کړی وي .

# نولسم لوست

**د تدریس وخت** : (**درې درسي ساعتونه**)

| **د مطلبونو سرليکونه** | **د مطلبونو شرحه** | **وخت** |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | نازو انا | |
| ۲- د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | _ د متن سم لوستل او ليکل وکړی شي،<br>_ د نازو انا په ټولنيز ژوند ، شخصيت او په وياړلو کارنامو پوهېدل،<br>_ د اړوند لوست د پېژندلو په ارزښت وپوهېږي او د خدمتونو او کارنامو په باب يې معلومات پيدا کړي،<br>_ د نازو انا د کړنو او لارښوونو عملي کول،<br>_ د نازو انا د علمي، فرهنگي، سياست او ادب په اړه خبرې وکړای شي. | |
| ۳- د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، اورېدل، سوال او ځواب، يو کسيز کار، ډله ييز کار | |
| ۴- د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشير، پنسل | |
| ۵- د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي د يادښت کتابچه، | |
| ۶- د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورنۍ دندې کتل او د تېر لوست ارزونه . | ۶ دقيقې |
| ۷- د انگېزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې او هغو ته ورته پوښتنې په شفاهي ډول له زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي زده کړې ته چمتو شي .<br>_ د نازو انا په باب موڅه اورېدلي؟ څوک په دې اړه څه ويلای شي؟<br>_ څوک کولای شي د نازو انا د کارنامو او خدمتونو په اړه معلومات وړاندې کړي؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښوونکی دې د سلام، احوال پوښتنې او مقدماتي فعالیتونو ځخه وروسته د تېر او نوي لوست ترمنځ اړیکې ټینګې کړي او د لوست عنوان دې پرتخته ولیکي. | ــ زده کوونکي دې د تېر او نوي لوست ترمنځ د اړیکو تشریح ته غوږ ونیسي او تختې ته دې متوجه شي. | ۳۵ دقیقې |
| ــ ښوونکی دې نوی لوست د کتاب له مخې په لوړ او مناسب اواز سره ولولي او زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر کړي . د متن د لوستلو په وخت کې دې د ټولګي ځارنه هم وکړي . | ــ زده کوونکي دې خپلو کتابونو ته ځیر شي او د ښوونکي د لوست تشریح ته دې غوږ ونیسي. | |
| ــ ښوونکی دې د متن له لوستلو ،لازمو ځرګندونو او توضیحاتو وروسته په ځینو زده کوونکو باندې د متن یو یو پاراګراف په لوړ غږ د ټولګي په مخ کې ولولي . | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي لازمو ځرګندونو او توضیحاتو ته غوږ ونیسي .په خپل وار سره دې یو یو پاراګراف د ټولګي په مخ کې ولولي . | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راغواړي چې د شعر مفهوم او معنا په خپلو ساده الفاظوکې نورو ټولګیوالو ته ووایي. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي لارښوونې سره سم عمل وکړي د شعر مفهوم دې په خپلو الفاظو کې نورو ټولګیوالو ته ووایي. | |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو ځخه د لاندنیو پوښتنو په کولو سره په لوست کې د هغوی د پوهېدو کچه وارزوي .<br>ــ مېرمن نازو د ځه ډول اخلاقو او شخصیت خاونده وه؟<br>ــ مېرمن نازو به میرویس نیکه ته ځه ویل او ځه نصیحت به یې ورته کاوه؟<br>ــ په پټه خزانه کې یې د مېرمن نازو په اړه ځه لیکلي دي؟ | ــ زده کوونکي لنډ او مناسب ځوابونه وایي . | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلو ووېشي، یوه ډله دې په متن کې راغلي خاص نومونه، دویمه دې عام نومونه او دریمه ډله دې صفتونه پیدا کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې په مناسبو جملو کې وکاروي، بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو یو تن خپلې لیکل شوی جملې د ټولګي په مخکې ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم ډلییز فعالیت سرته ورسوي .<br>ــ ټول زده کوونکي دې په خپل وار سره د پوښتنو په کولو او ځوابونو ورکولو کې ونډه واخلي. | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي پر دوو مناسبو ډلو ووېشي په خپل وار سره دې د هرې ډلې یو یو تن ټولګي مخې ته راوغواړي چې یو تن د کتاب د لوستل شوي متن ځخه یوه پوښتنه وکړي او هغه بل دې د پوښتنې ځواب ووایي. | ــ زده کوونکي دې فعالیت سرته ورسوي. | |
| ــ ښوونکی دې د لوست شپږم فعالیت په زده کوونکو باندې په مناسب وخت کې ترسره کړي. | ــ زده کوونکي دې لنډ لنډ ځوابونه ووایي. | |
| ــ ښوونکی دې دلنډو پوښتنو په کولو سره د لوست ارزونه | | |

| | | |
|---|---|---|
| وکړي.<br>ـ ښوونکی دې د کتاب کورنۍ دنده زده کوونکو ته ورکړي چې په بل درسي ساعت کې يې له ځانه سره راوړي. | ـ زده کوونکي دې کورنۍ دنده ترسره کړي او په راتلونکي پښتو درسي ساعت کې دې ښوونکي ته وښيي. | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | ددریم فعالیت دپوښتنې د ځواب په اړه باید ووایو چې مېرمن نازو انا زموږ د هېواد د ملي مشر میرویس خان نیکه مور وه، یوه پرهیزګاره عالمه، فاضله او ادیبه مېرمن وه.<br>نازو انا خپل زوی میرویس نیکه ته نصیحت کاوه چې زویه د بیټ نیکه له قوله ستا په مخکې لوی کارونه دي چې لوی شی. د خدایﷻ عبادت او د خلکو خدمت کوه، ته خدایﷻ د لویو کارونو سرته رسولو ته پیدا کړی يې چې نور خلک ستا په سیوری کې ارام ژوند وکړي .<br>میرویس نیکه به همیشه د مور دا نصحیت یادوه.<br>د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک لیکلي چې مېرمن نازو د خپلو اولادونو روزنې او تربیې ته ډېره پاملرنه کوله. | |

**اضافي معلومات**

حاجي میرخان د میرویس نیکه نوم دی، پلار يې شاه عالم نومېده او مور يې نازو انا نومېده چې نازو د سلطان ملخي توخي لور وه ،میرویس نیکه په ۱۰۸۴ هـ . د کلات په شمال کې د تازې په جنوب کې زېږېدلی دی او په ۱۱۲۰ هـ . کال کې د ګورګین له وژلو وروسته يې د کندهار خپلواکي ترلاسه کړه او۸ کاله مشرو.

ګرګین : اصلي نوم يې ختګ و. مخکې له دې چې کندهار ته راولېږل شي د ګرجستان د صفوي دولت په خلاف يې بغاوت وکړ او ونیول شو. څرنګه چې مسلمان شو د وخت صفوي پاچا د هغه له سزا څخه تیراود کندهار د کلانتر په توګه يې راولېږه .په ۱۱۱۴ هـ کې کندهار ته لاړ او په ۱۱۲۰ هـ . دمیرویس نیکه له خوا ووژل شو.

شاه حسین په ۱۱۱۴ هـ . د کلات په سیوری کې زېږېدلی دی تر ۱۲ کلنۍ پورې يې دودیز علوم ولوستل او استادیې ملا یار محمد خان و. په ۱۴ کلنۍ کې يې پلار مړ شو، کله چې محمود په ایران باندې لښکر کشي وکړه.دکندهار د چارو مشري ورته وسپارل شوه.

پښتو د یو لوی او پراخه قوم ژبه ده چې د لرغونو اثارو لرونکي ده، خو ډېر لرغوني اثار اوس نشته .علتونه يې دا دي چې پښتنانه د تاریخ په اوږدو کې له ښاري ژوندانه څخه لیرې ساتل شوي دي . له بلې خوا زموږ خلکو د خپلو ادبي اثارو لیکلو ته وخت پیدا نه کړ او که چا لیکلي هغه هم د دښمنانو له خوا وړل شوي دي او دغه رازنور قلمي اثار په خپله د خلکو له خوا یا په اوبو کې اچول شوي ، یا په قبرونو کې اچول شوي او یا خو ورته اور اچول شوی دی . د بېلګې په توګه د هندوستان د ډیلي په کتابخانه کې زموږ قلمي نسخې شته، د لندن د برېټش موزیم په کتابخانه کې قلمي نسخې شته . د جرمني دتیوبنګن په کتابخانه کې د علیخان د دیوان، د رحمان بابا د دیوان او د بایزید د خیرالبیان قلمي اثار موجود دي..

ډېر اثار د وخت تاړاکونو وړي دي . لومړی کتاب د تذکرة الاولیاء کتاب و چې تر پټې خزانې دمخه زموږ په واک کې و چې د پښتو ژبې ارزښتناک اثر بلل کېده، د تذکرة الاولیاء څو پاڼې د پښتنانه شعراء په لومړي ټوک کې راغلي دي . په پټه

خزانه کتاب کې چې د محمد هوتک تالیف دی چې د شاه حسین هوتک په امر یې لیکلي دی. درې خزانې په کې دي یعنې نوموړی کتاب په درو برخو ویشل شوی دی.
په لومړۍ برخه کې یې لرغوني دمخه شاعران راغلي دي . په دویمه برخه کې د محمدهوتک د زمانې شاعران راغلي او په دریمه برخه کې یې ښځینه شاعرانې راغلي.
د پښتو ژبې لومړنی شعر چې په امیر کروړ پورې اړه لري د پټې خزانې په واسطه ترلاسه شوی دی چې نوموړی امیر په ۱۳۹ هـ . کې د غور په مندېش کې امیر شوی دی او په ۱۵۴ هـ . کال د فوشنج په جګړه کې مړ شوی دی .
نازو انا د سلطان ملخي توخي لور وه او په ۱۰۶۱ هـ . کال کې د کلات په شمال شرق کې د تازې په نوم سیمه کې زېږېدلې ده .دغه سیمه د کابل کندهار د عمومي واټ په غاړه پرته ده.
د نازو انا پلار سلطان توخي له غزني څخه تر جلدک پورې د پرتو قومونو مشر و. په خپله مشرۍ کې د پوره واک خاوند و. نازو انا په کوچنیوالې کې له پښتو مېرمنو او د هغې سیمې له علماوو څخه زده کړه وکړه .
سلطان ملخی د سور غره ته نژدې په یوه جګړه کې مړ شو.
د نازو انا ورور حاجي عادل دخپل پلار د غچ او انتقام د اخیستلو لپاره جنګ ته لاړ او خپله سرپرستي یې نازو انا ته پرېښوده.
په هغه وخت کې نازو توره تر ملا کړه، له جنګیالیو ځوانانو سره یې په پوره مېړانه خپل کور، کلا او کهول له دښمنانو څخه وساتل.
نازو په مېلمستیا او د مېلمنو په پالنه کې ډېره مشهوره ښځه وه، کله چې به په ژمي کې د مسافرو قافلې راتلې ،هغوی به د نازو انا په کلا اړول او په سوو مسافر به یې روزل او هغوی ته به یې ډوډۍ ورکوله ،ځکه نوموړې په سخاوت کې پوره مشهوره شوې وه.
د هغې نوم له خیبر څخه تر ترکستان پورې خپور شوی و. نازو انا د ښالم خان هوتک مېرمن وه چې هغه د کرم خان زوی و او ښالم خیل داسې قوم و چې د کندهار او اصفهان ترمنځ سیمې یې په واک کې درلودې.
دنازو انا څلور زامن وو چې مشر یې حاجي میرخان و چې وروسته بیا په میرویس نیکه مشهور شو او نور یې عبدالعزیز خان، یحیٰی خان او عبدالقادر خان نومېدل .
نازو انا به خپلو بچیانو ته په اوداسه کې شیدې ورکولې، کله چې د هغې مشر زوی حاجي میرخان تولد شو ،هغې خوب ولید: په خوب کې شیخ بیټنی ورته وایي چې د دې زوی پالنه او روزنه وکړه چې دغه زوی دې لوی شي ،لوی کارونه به وکړي او د بیت الله شریف زیارت ته به لاړ شي ،هلته به په زیارت مشرف شي.
حاجي میرخان چې کله وزېږېدو، د هغه مور بي بي په دیانت او عبادت سره لوی کړ. ټول دیني فرایض یې ورته وښودل او همېش به یې خپل زوی ته نصیحت کاوه چې د شیخ بیټني په وینا ستا په مخ کې لوی کارونه دي، نو چې لوی شي ،د خدایﷻ عبادت او د خلکو خدمت کوه. ته خدایﷻ د لویو کارونو لپاره پیدا کړی یې.
حاجي میر خان به هر وخت ویل چې ماته مور نصیحت کړی دی او ماته یې د لویو کارونو وصیت کړی دی . په ۱۱۱۹ هـ . کال کې چې میرویس خان خپل قوم له ظلم څخه وژغورلو، نو خدایﷻ پاک ته یې د شکر سجده وکړه.
هغه وویل چې خدایه! دا هغه کار و چې ماته مور راسپارلی و. دادی ستا د بندګانو خدمت مې وکړ.
نازو انا سربېره پر دې چې زړوره، سخي او پرهېزګاره وه. د خدایﷻ په مناجاتو کې یې ډېر شعرونه ویل. هغې د شعرونو یو دیوان هم درلوده چې په هغه کې دوه زره بیتونه موجود وو.
دا د هغې د شعر یوه بېلګه ده:

| سحـــــرګاه وه د نرګس ليمه لانده | ــ | څاڅکې څاڅکې يې له سترګو څڅېده |
| --- | --- | --- |
| ما ويل څه دي کښلې ګله ولې ژاړې | ــ | ده ويل ژوند مې دی يوه خوله خنديده |


**ماخذونه:**

پټه خزانه، د محمد هوتک بن داود ليکنه دويم چاپ ، مخ۱۷٦.

د پښتو ادبياتو تاريخ، پوهاند حبيبي.

د پښتو ادبياتو تاريخ منځنۍ دوره ، پوهاند ډاکټر زيورالدين زيور.

# شلم لوست

## د تدریس وخت : درې درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- دلوست موضوع | د قید ډولونه | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې،مهارتي او ذهنیتي موخې | ـ زده کوونکي په پښتو ژبه کې قیدونه وپېژني،<br>ـ په جملو کې د قیدونو د ارزښت او ګټې په هکله خبرې وکړی شي،<br>ـ په خپلو لیکنو کې قیدونه وکاروي او د کارونې په ځای بې پوه شي،<br>ـ له قید راوړلو سره یې مینه پیدا شي. | |
| ۳- د تدریس لارې | لوستل، اورېدل، غوږنیول، خبرې کول | |
| ۴- د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر | |
| ۵- د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، تحریري، د ښوونکي د یاددښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د کورني کار لیدل او د تېر لوست ارزیابي | ۶ دقیقې |
| ۷- د انګېزې رامنځته کول | کله مو په ګرامر کې د قید نوم اورېدلی دی؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی د نوي لوست سرلیک په تخته لیکي او په زده کوونکو باندې متن په بشپړه توګه لولي او که اړتیا وه په خپله یې ورته وایي. کله چې متن ولوستل شي، نو بیا له زده کوونکو څخه د فردي لیاقت په پام کې نیولو څو تنه په وار سره د متن یو یو پاراګراف لولي، ښوونکی د ټولګي څارنه کوي . | ــ له ستړي مشي وروسته کورنۍ کار ښوونکي ته ښیي او ټولګیوالو ته یې وایي. | ۳۵ دقیقې |
| ــ زده کوونکو ته دنده ورکوي چې د متن له مخې قیدونه پیدا او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي. | ــ نور زده کوونکي د پاراګرافونو د لوستلو په وخت کې غوږ نیسي چې د جملو تلفظ او ترکیب ته متوجه شي | |
| ــ زده کوونکي په ډلو وېشل کېږي، هره ډله په متن کې قیدونه پیدا کوي بیا یو استازې نوموړي قیدونه په تخته لیکي او د بلې ډلې استازی یې په جمله کې کاروي، ښوونکی څارنه او لارښوونه کوي . | ــ زده کوونکي قیدونه په خپلو کتابچو کې لیکي. | |
| ــ زده کوونکي د فعالیتونوڅلورمه شمېره پوښتنې ته انکشاف ورکوي او بیا یې څو تنه د ټولګیوالو په مخکې وایي . | ــ زده کوونکي لومړی انکشاف ورکوي او بیا د نورو زده کوونکو وینا ته غوږ نیسي . | |
| ــ څو زده کوونکي دې د قیدونو په ډولونو خبرې وکړي . | – څوزده کوونکي دقیدونو دډولونو په اړه خبرې کوي . | |
| ــ د یو ګروپ زده کوونکی دې تختې ته لاړ شي ،یوه جمله دې و لیکي چې په هغې کې د وخت قید راغلی وي، بل زده کوونکی هغه قید په سوالیه او منفي جمله کې کاروي . ښوونکی لارښوونه او څارنه کوي . | – زده کوونکي په فعالیت کې برخه اخلي اونور زده کوونکي ورته ځیر وي .که ستونزه ولري ،نوپوښتنې کوي. | |
| ــ ښوونکی د ټولګي د څارلو په ترڅ کې د فعالیتونو د ۸ شمېرې قیدونه په یوه زده کوونکي لیکي او نور زده کوونکي یې په خپلو کتابچو کې کاروي . | ــ زده کوونکي په فعالیت کې برخه اخلي . | |
| ــ څو زده کوونکي پورته کېږي یو بل ته مخامخ درېږي یود قیدنوم وایي بل یې په جمله کې کاروي، ښوونکی لارښوونه او څارنه کوي . | ــ زده کوونکي په جملوکې قیدونه کاروي . | |
| ــ که چېرې وخت پاتې وي ،ښوونکی په خپله خوښه کولای شي چې له زده کوونکوسره په درسي، مهارتي او ذهنتي برخو کې کار وکړي . | زده کوونکي غوږ نیسي اودښوونکي پوښتنوته ځواب وایي . | |
| ــ ښوونکی د لوست لنډیز وایي. | – زده کوونکي دمتن لنډیز ته غوږ ږدي . | |
| ــ د لوست د ارزونې لپاره دې له څو زده کوونکو د ارزونې پوښتنې وکړي . | | |
| ــ ښوونکی د متن په پای کې کورنۍ دنده ورکوي . | ــ زده کوونکي په بل درسي ساعت کې کورنۍ دنده راوړي. | |
| د متن دستونزمنو برخو روښانول | صفت :صفت هغه کلمه ده چې داسم ځرنګوالی بیانوي | |

| | |
|---|---|
| | .<br>ضمیر:هغه کلمه ده چې په جملوکې دنوم دتکرار مخه نیسي اودنوم په ځای کاریږي .<br>فعل:فعل هغې کلمې ته وایي چې په یوه ټاکلې زمانه کې دیوه کار یایوې پیښې په کیدو یادیوه حالت په راڅرګندیدو دلالت کوي . |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه | ګران افغانستان د ټولو افغانانو ګډ کور دی، په دې ګډکور کې باید هر انسان خپل حقوق او د نورو حقوق وپېژني.<br>قانون په ځان او نورو تطبیق کړي، د هر انسان د انساني اړتیاوو د پوره کولو پلوي وي.<br>_ د اصلي قیدونو یو څو مثالونه :<br>زه نن کور ته ځم، سبا ته راځم، احمد سبا راځي، او داسې نور.<br>غیر اصلي قیدونه: تېز تېز راځم. په لازمي فعل کې د مفرد لپاره، تېز تېز راغلو، په لازمي فعل کې د جمع لپاره:<br>تاسو کرار ناست یئ.<br>زه به استاد ته ژر سلام واچوم .<br>_ په سوالیه جمله کې قید:<br>زه کور ته ژر نه ځم.<br>ته ژر رانه غلې .<br>زه د کورنۍ دندې له نه راوړلو څخه تل ځان ساتم. |

## اضافي معلومات

قیدونه هغه ژبني عناصر دي چې د یو فعل دپېښېدو څرنګوالی ښیي. دا څرنګوالی د فعل د پېښېدلو ځای یا مهال ټاکي او یا څرګندتیا، ټینګار او داسې نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي .

**د قید ډولونه :**

په پښتو ژبه کې قیدونه په نه ګردانېدونکي او ګردانېدونکو باندې وېشل کېږي.

اصلي قیدونه (نه ګردانېدونکي قیدونه):

د زمان فعل قید:

د مهال له مخې د یو فعل پېښېدنه څرګندوي، لکه اوس، دمخه، پخوا، وړاندې، سملاسي، وړمه ورځ، وړمه شپه، پرون ورځ، پرون شپه، نن، سبا، نن شپه، نن ګهیځ، نن غرمه، نن ماښام، سبا ته، بل سبا ته، ګهیځ، سهار، غرمه، ماسپښین، مازدیګر، دوخته، ناوخته، لمر خاته، لمر پرېواته، سږ کال، پروسږ کال، وړم کال، لاوړم کال، کال ته، بل کال ته.

د مکان قید :

دیو فعل پېښېدنه د ځای او چاپېریال له مخې څرګندوي، لکه: دلته، هلته، دورې، هورې، مخکې، وروسته، شاه ته، مخ ته، ښېرته، وړاندې، کښته، پورته، لاندې باندې، دننه، دباندې، اخوا، دېخوا، مخامخ.

څرګندي او ټینګاري قیدونه :

چې د یو فعل د پېښېدنې څرګند حالت یا ټینګار ښیي، لکه په پټه، په ډاګه، په څرګنده، په ځغرده، ډانګ پیلې، په ښکاره، په غلا، په زیار، په خوارۍ، په میړانه، په زور، په ویره، په خوښه، په ورو، په مړو سترګو، په ټیټو سترګو، په جګه، په کلکه، په ټینګه، زړه نازړه، په ناسته، په ولاړه، په منډه، په ملاسته، هرومرو، په هر ډول، په هڅه، خوشې په خوشې، څه نا څه، لږ و ډېر.

ګردانېدونکي قیدونه :

ځینې قیدونه شته کله چې له لازمي فعل سره راشي، هلته بیا د جملې د فاعل لپاره کارول کېږي، خو که دمتعدي فعل سره راشي ،هلته بیا د جملې د مفعول لپاره کارول کېږي، البته دغه کارول د جنس، عدد او شخص له پلوه ترسره کېږي.

د لازمي فعل سره:

دلته فعل لازمي دی او قید د جملې د فاعل لپاره کارول شوی دی .

الف:

**ناتېره زمانه**

زه (مذکر) دروند ګرځم.

زه (مؤنث) درنده درنده ګرځم .

ناتېره زمانه :

موږ (مذکر) درانده درانده ګرځو.

موږ (مؤنث) درندې درندې ګرځو.

ته ( مذکر) دروند دورند ګرځې.

تاسې (مؤنث) درندې درندې ګرځئ.

دغه هلک دروند دروند ګرځي.

دغه نجلۍ درنده درنده ګرځي.

دغه هلکان درانده درانده ګرځي.

دغه نجونې درندې درندې ګرځي.

**تېره زمانه**

زه (مذکر) دروند دروند ګرځېدم.

زه (مؤنث) درنده درنده ګرځېدم.

موږ (مذکر) درانده درانده ګرځېدو.

موږ (مؤنث) درندې درندې ګرځېدو.

ته (مذکر) دروند دروندګرځېدې.

تاسې (مؤنث) درندې درندې ګرځېدئ.

دغه هلک دروند دروند ګرځېده.

دغه نجلۍ درنده درنده ګرځېده.

دغه هلکان درانده درانده ګرځېدل.

دغه نجونې درندې درندې ګرځېدلې.

دلته فعل متعدي دی او قید د جملې د مفعول لپاره کارول شوی دی .

ب: ناتېره زمانه:

تور ما (مذکر) پوخ پېژني.

تور ما (مؤنث) پخه پېژني.

تور موږ (مذکر) پاخه پېژني.

تور موږ (مؤنث) پخې پېژني.

**ناتېره زمانه** :

تور تا (مذکر) پوخ پېژني.

تور تا (مؤنث) پخه پېژني.

تور تاسې (مذکر)پاخه پېژني.

تور تاسې (مؤنث) پخې پېژني.

تېره زمانه :

تور زه (مذکر) پوخ پېژندلم.

تور زه (مؤنث) پوخ پېژندلم.

تور موږ (مذکر) پاخه پېژندلو.

تور موږ (مؤنث) پخې پېژندلو.

**تېره زمانه** :

تور ته (مذکر) پوخ پېژندلې.

تور ته (مؤنث) پخه پېژندلې.

تور تاسې (مذکر) پاخه پېژندلئ.

تور تاسې (مؤنث) پخې پېژندلئ.

| تور دغه هلک پوخ پېژني. | تور دغه هلک پوخ پېژانده. |
|---|---|
| تور دغه نجلۍ پخه پېژني. | تور دغه جلۍ پخه پېژندله. |
| تور دغه نجونې پخې پېژني. | تور دغه جونې پخې پېژندلې. |

که چېرې مورِ الف او ب مثالونو ته ځیر شو، وینو چې د الف په ردیف کې د جملې فعل لازمي فعل او قید (دروند ـ دروند) د جملې د فاعل لپاره کارول شوی دی .هلته چې د جملې فاعل مذکروي قید/ دروند دروند / په شکل، خو هلته چې د جملې فاعل جمع مذکر دی قید د /درانده درانده/ په بڼه همدرانګه هلته چې د جملې فاعل مؤنث دی قید د / درندې درندې / په بڼه ظاهر شوی دی .همدارنګه د / ب / ردیف مثالونه رابنیي چې د جملې فعل متعدي دی او قید د جملې د مفعول لپاره ګردان شوی دی .

د /ب / ردیف په مثالونو کې هلته چې مفعول مفرد مذکر دی قید د / پوخ/ په شکل ،خو هلته چې د جملې مفعول مفرد مؤنث دی قید د /پخه/ په بڼه ،همدارنګه هلته چې د جملې مفعول جمع مذکر دی قید د / پاخه/ په شکل او کله چې د جملې مفعول جمع مؤنث دی قید د /پخې/ په شکل ګردان شوی دی .

نو د پورتنیو بېلګو څخه څرګندېږي چې ځینې قیدونه هم ګردانېږي .

په دې معنی چې کله د جملې فعل لازمي وی ،قید د جملې د فاعل لپاره د جنس اوعدد له پلوه ګردانیږي او کله چې د جملې فعل متعدي وي، نو هلته بیا قید د جملې د مفعول لپاره د جنس او عدد له پلوه ګردانېږي.

۱ـ قید د یو فعل د پېښېدنې څرنګوالی ښیي دا څرنګوالی د فعل د پېښېدلو ځای، مهال، څرګندتیا او نورې ځانګړتیاوې ښکاره کوي .

۲ـ په پښتو ژبه کې اصلي قیدونه ګردانېدونکي دي، خو غیر اصلي قیدونه، لکه : نومونه او صفتونه چې کله د قیدونوپه توګه راځي ګردانېدونکي دي .

اصلي قیدونه په لاندې ډول دي.

الف: د زمان قید چې د زمان او وخت له مخې د فعل پېښېدنه څرګندوي، لکه : اوس، دمخه، پخوا، ورمه ورځ، پرون، سږ کال، نن ورځ .

ب: د مکان قید چې د یو فعل پېښېدنه د ځای او چاپېریال له مخې څرګندوي، لکه : دلته، هلته، لاندې، باندې، اخوا، دېخوا.

ج: څرګندنې او تېنګاري قیدونه چې د یو فعل د پېښېدنې حالت یا تېنګار ښیي ،لکه : په پټه، په ښکاره، په ډاګه، په زیار.

**ګردانېدونکي قیدونه**:

ځینې قیدونه شته که چېرې د لازمي فعل سره راشي هلته بیا د جملې د فاعل له پلوه او که د متعدي سره راشي، هلته بیا د جملې د مفعول لپاره تعریف کېږي، لکه د لازمي فعل سره : زه (مذکر) دروند دروند ګرځم / زه (مؤنث) درنده ګرځم / مورِ (مذکر) درانده درانده ګرځو. مورِ (مؤنث) درندې درندې ګرځو. د متعدي فعل سره احمد ما (مذکر) پوخ پېژني.
احمد ما (مؤنث) پخه پېژني. احمد مورِ (مذکر) پاخه پېژني. احمد مورِ (مؤنث) پخې پېژني.

ماخذ:
پښتو غږ پوهنه او ویي پوهنه، (فونولوژي ـ مورفولوژي)، لیکوال: پوهنوال محمد صابر خویشکی، ۱۳۸۰ هـ . ش. کال.

# يوويشتم لوست

## د تدريس وخت : درې درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرليکونه |
|---|---|---|
| | ننگرهار | ۱- د لوست موضوع |
| | ـ زده کوونکي د ننگر هار ولايت وپېژني،<br>ـ د هېواد له يوه تاريخي ولايت سره يې مينه پيدا شي،<br>ـ د ننگرهار د تاريخي لرغونتوب په هکله خبرې وکړی شي،<br>ـ د هېواد له ولايتونو سره اشنا شي. | ۲- د زده کړې پوهنيزې، ذهنيتي اومهارتي موخې |
| | لوستل، ليکل، غورِ نيول، اورېدل، خبرې کول، په گروپونو کې کار کول، انفرادي کار کول | ۳- د تدريس لارې |
| | کتاب، کتابچه، قلم، تخته، تباشير او د ننگرهار نقشه | ۴- د تدريس وسيلې اومرستندوی توکي |
| | شفاهي، تحريري، د ښوونکی د يادښت کتابچه<br>. | ۵- د ارزونې لارې او وسيلې |
| ٦ دقيقې | . سلام، احوال پوښتنه، حاضرۍ اخيستل، د تېر درس پوښتنه، د کورنۍ دندې ليدل او د نوي درس په هکله انگيزيي پوښتنې | ٦- د زده کړې او تدريس فعاليتونه |
| ۴ دقيقې | ـ تاسو کله د ولايتونو په نومونو کې د ننگرهار نوم اورېدلی دی؟<br>ـ څوک به ووايي چې ننگرهار چېرې موقعيت لري؟ | ۷- د انگېزې رامنځته کول |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې په زده کوونکو باندې متن په چوپه خوله یوځل ولولي چې هغوی ستونزمنې کلمې په نښه کړي . یو زده کوونکی دې ستونزمنې کلمې په تخته ولیکي .ښوونکی دې معنا کړي .نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | – ز ده کوونکي متن له ځانه سره لو لي اوستونزمنې کلمې په نښه کوي اوپه خپلو کتابچو کې د لغتونو معنا لیکي.<br>ـ زده کوونکي یویوپاراګر ا ف لولي . | ۳۵ دقیقې |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي په وار سره دې د هر ګروپ یو یو زده کوونکی پاراګراف ووايي ،نور دې ورته غوږ ونیسي. | ـ نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. | |
| ـ څو زده کوونکي دې د ننګرهار ولایت د ارزښت او د ځانګړو پیداوارو په هکله خبرې وکړي او ښوونکی دې څارنه وکړي . | ـ زده کوونکي په ډلییز فعالیت کې برخه اخلي .<br>نور زده کوونکي دې غوږ ونیسي . | |
| ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او یوه ډله دې په متن کې په شریکه فعلونه په جملو کې وکاروي او بله ډله دې په شریکه صفتونه په جملو کې وکاروي او بیا دې د هرې ډلې استازی ووايي. ښوونکی دې څارنه وکړي چې هر زده کوونکی په ګروپ کې برخه واخلي. | ـ یوزده کوونکی دننګرهارولایت په اقتصا دي اهمیت خبرې کوي اونور زده کوونکي دې غوږ ونیسي. | |
| ـ یو زده کوونکی دې د ننګرهار ولایت په اقتصادي اهمیت خبرې وکړي ، بل زده کوونکی دې بیا د هماغه لومړي زده کوونکي خبرې ووايي. | ـ زده کوونکي دننګرهار ولایت په لرغونتوب خبرې کوي . | |
| ـ زده کوونکي دې د ننګرهار ولایت د هېواد د نورو ولایتونو سره د تاریخي لرغونتوب په برخه کې اوڅو نور دې د تولیداتو او اب و هوا له پلوه پرتله کړي . | | |
| ـ څو زده کوونکي دې ووايي چې له ننګرهار سره یې څومره مینه پیدا شوې ده ؟ | ـ زده کوونکي دخپل احساس څرګندونه کوي . | |
| ـ ښوونکي دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې خپلې ستونزې مطرح کړي . ښوونکی دې د هغو زده کوونکو په واسطه ورته ځواب کړي که اړتیا وه بیا دې خپله خبرې وکړي. | ـزده کوونکي کولای شي خپل مشکلات ووایي.<br>زده کوونکي غوږ نیسي. | |
| ـښوونکی د لوست لنډیز وایي.اوبیادنوي لوست ارزيابي کوي اوبیا د څو پوښتنو له کولو وروسته د کتاب د متن مطابق کورنۍ دنده ورکوي . | ـ د نوي لوست پو ښتنې ځوابوي .<br>ـ کورنۍ دنده باندې ځان پوهوي او په بل پښتو درسي ساعت کې یې راوړي . | |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول | په ۱۰۵٦ هــ . ق. کې د مملې تاریخي باغ د شاه جهان پاچا په وخت کې د هغه په امر جوړ شوی دی . | |

| | |
|---|---|
| | په جلال اباد کې د سراج العمارت باغ او د امیر شهید باغ، د حبیب الله خان په وخت کې جوړ شوی دی . د جلال الدین اکبر په وخت کې د جلال اباد د ښار بنسټ ایښودل شوی دی .<br>د ننگرهار کانال په ۱۳۴۵ هـ . ش . کال کې جوړ شوی دی . |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه** | **د فعالیتونو د ۳ شمېرې ځواب :**<br>**د ننگرهار موسم په اوړي کې گرم او په ژمي کې معتدل دی. مشهور محصولات یې نارنج، گني، زیتون، مالتې اونور دي چې بازارونو ته وړاندې کېږي .**<br>**دغه راز د فارم هډې سیمه یې ډېر شهرت لري چې د بودېزم ډېر اثار په کې موجود دي .** |

## اضافي معلومات

دویدې زمانې څخه بیاتر ډېرووختونو پورې د افغانستان شرقي سیمه د کابل د سیند له چینو څخه بیا تر هغه ځایه چې په اباسین ورګډېږي د (ګندهارا) په نامه یادېدله . د ګندهارا په منځ کې یوه سیمه وه چې (ننګرهار) یې باله

د ۱۳۲۱ لمریز څخه تر ۱۳۲۵ لمریز پورې داسې یو نظر را منځته شو چې تاریخي نومونه دې بېرته راژوندي شي د وخت حکومت هم دا خبره ومنله او د (سمت شرقي) نوم یې په (ننګرهار) بدل کړو.

په ۱۳۴۳ لمریز کال کې ننګرهار، کونړ او لغمان د افغانستان په اداري تشکیلاتو کې ځانګړي ولایتونه شول .دننګرهار ولایت ټو ل مساحت ۷۶۱۶ کیلومتره مربع دی . د ننګرهار وادي ختیځ، لویدیځ ته واقع شوې ده او کابل سیند پنجشیر سینداو دغه راز د کونړ سیند یې په منځ کې تېرېږي، جنوب ته یې سپین غر غرونه ان تر تورخم پورې اوږدوالې لري چې لوړه څوکه یې سیکارام نومېږي او ۴۷۵۵ متره لوړوالی لري په داسې حال کې چې ننګرهار ولایت مرکز د جلال اباد ښار د بحر له سطحې څخه ۵۱۰ متره لوړوالي لري لویدیځ لور ته یې تور غر او شمال ته یې د بهسودو او دره نور غرونه موقعیت لري ختیځ ته یې شمشاد او خیبر واقع دی .

د سرخرود او د جلال اباد د جنوب غرب او د کونړ سیند د شمال له لورې د کامې ترڅنګ برخه کې له کابل سیند سره یو ځای کېږي .

ښاغلی احمد علي کهزاد په خپل کتاب (افغانستان در پرتو تاریخ) کې لیکي چې د ننګرهار کلمه تر اسلام د مخه په پخوانو ماخذونو کې لومړی ځل د نګاراهارا په شکل لیدل شوې ده. د چینیایي ګرځند هېوان تسنګ په ویناد ننګرهار د کلمې یادونه ان د اویستا په کتاب کې هم شوې ده .دوو چینیایي زایرانو (فاهیین) او (هېوان تسنګ) هغه وخت چې د هلوې زیارت کاوه د یوه ښار د نوم (ناکې لوهو) یادونه یې کړې ده او هغه یې د (نګاراهارا) په نامه یادکړی دی .ننګرهار د ننګر په نوم هم یاد شوی د ی .

همدارنګه جلال اباد چې د ننګرهار ولایت مرکزي ښار دی، هم دغه ښار چې له کابل څخه نژدې ۱۴۷ کیلومتره لرې د کابل او پېښور دلارې پر سر د بهسودود سیند په غاړه واقع دی ، د هېواد له ښکلو ژمنیو ښارونو څخه شمېرل کېږي . د جلال اباد ځمکې دافغانستان له حاصل خېزو او سمسورو ځمکو څخه ګڼل کېږي چې دغه ځمکې زیاتره دوه فصله حاصل ورکوي .

په جلال اباد کې په ژمي کې هم نباتات له ودې څخه نه پاتې کېږي له همدې امله په کې مشهور بڼونه چې په ښکلا اوسمسور والي کې ساری نه لري. جوړ شوي دي . ډول ډول مېوه لرونکي او بې مېوې ونې لري .د دې ښار په شل کیلومترۍ کې د هلوې تاریخي سیمه چې لرغونی بودایي تمدن ښیي، د لیدلو وړ ځای دی .داوسني جلال اباد ښارتر نومولو دمخه دننګرهار مرکز ددنپور ښار و

ا وکیدای شي چې نوموړی مرکز دسره رود ولسوالۍ جنوبي خوا کې وي. اوسنی جلال اباد دجلال الدین اکبر په زمانه کې ودان او د جلال اباد نوم یې ورباندې کېښود.

دا ښار په (۱۸۳۴ م.) کال کې د امیر دوست محمد خان لخوا ونیول شو له هغه وروسته د افغان او انګلیس په لومړۍ جګړه کې زیانمن شو او بیاد افغان او انګلیس په دویمه جګړه کې د انګرېزانو لخوا ونیول شو.

همدارنګه په ۱۸۴۲ع . کال یوې سختې زلزلې د هغه تر نیمایي زیاته برخه ویجاړه او تباه کړه .په ۱۳۰۷ لمریزکال کې د کورني اړو دوړ پر مهال د هغه ځینې عصري ودانۍ د یاغیانو له خوا وسوځېدی . اوس مهال دجلال اباد ودانۍ په عصري ودانۍ جوړې شوې دي یو شمېر تفریح ځایونه په کې هم ودان شول ، همدارنګه دا ښار د تجارت او ترانزیت له لارې ډېر

شهرت لري . او د هېواد دويمه درجه مهم ښار ګڼل کېږي. په ننګرهار کې د تفريح لپاره يو بل تاريخي باغ هم شته چې د مملې باغ په نامه يادېږي او دشاه جهان پادشاه په وخت کې په ۱۰۵٦ هــ . ق. کال دشعبان په مياشت کې جوړ شوی دی او دا باغ تر اوسه پورې په هماغه نقشه ودان پاتې شوی دی .

اخځليکونه:


۱ــ پښتو اريانا دايرة المعارف، دويم ټوک، د اطلاعاتو او کلتور وزارت. ۱۳۵۵ لمريز کال، ۱۰۹ مخ.

۲ــ پوهاند غلام جيلاني عارف د افغانستان د ولايتونو جغرافيه، د اريک ګرځند کتابتونو اداره.، ۱۳۷۹ لمريز کال، ۳۲ مخ.

۳ــ پښتر اريانا دايرة المعارف، اووم ټوک.

۴ــ پښتو اريانا دايرة المعارف، پنځم ټوک، د اطلاعاتو او کلتور وزارت کابل ۱۳۵۴ لمريز کال .

۵– د ننګرهار ښاروالۍ درې مياشتنۍ خپرونه، دويم کال، دويمه ګڼه ورى ــ غوايي غبرګولی، ۱۳۸۸ کال.

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس وخت : ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | سیدال خان ناصر | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي دغه موخې زده کړې:<br>ـ سیدال خان ناصر وپېژني،<br>ـ د سیدال خان له ملي خدمتونوڅخه خبر شي،<br>ـ په زده کوونکو کې د ملي مشرانو د پېژندلو احساس راپیدا شي،<br>ـ په زده کوونکو کې به د لوستلو او لیکلو وړتیا رامنځته شي،<br>ـ په خپلواک ډول دمتن د پای د فعالیتونو د سرته د رسولو وړتیا ومومي،<br>ـ له یوه بل سره د لارښوونو هڅې په ځان کې ګړندی کړي،<br>ـ په هغو زده کړو بریالي شي چې پخوا یې ورته د زده کړې لار نه وه موندلی. | |
| ۳– د تدریس لارې چارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یواځینې کار او ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | اړوند درسي کتاب، توره تخته، تباشیر، چارت، تخته پاک | |
| ۵– د ارزلو لا رې او وسیلې | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه او د ښوونکي د یاددښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سترې مشي، احوال پوښتنه ،حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه | ٦ دقیقې |
| ۷– د انګېزې رامنځته کول | کله مو د سیدال خان ناصر نوم اورېدلی دی؟<br>– سیدال خان ناصر څه ډول شخصیت و ؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښوونکی له احوال پوښتنې وروسته دتیر لوست پوښتنه کوي . | زده کوونکي پوښتنوته ځواب وايي. | ۳۵ دقیقې |
| ــ ښوونکی دې په زده کوونکوباندې په چوپتیا سره درس ولولي، بیا دې پر څو تنو زده کوونکو په وار سره د متن یوه یوه برخه په لوړ اوازولولي او نور زده کوونکي دې پام ورته وکړي . | زده کوونکي دې په چوپتیا سره لوست ولولي اوبیادې نورو زده کوونکو ته چې یو یو پاراګراف لولي ، غوږ ونیسي . | |
| ــ زده کوونکي دې د اړوند درس یوه یوه برخه پخپله خوښه په کتابچو کې ولیکي او بیا دې څو زده کوونکي لیکلی برخې په ټولګي کې ولولي . | زده کوونکي په خپلوکتابچوکې ددرس یوه برخه په خپله خوښه لیکي اوبیا یې دښوونکي په اشاره دټولګي په مخ کې لولي . | |
| ــ وروپسې دې زده کوونکي له اړوند درس څخه د سیدال خان ناصر په هکله څو کرښې معلومات پخپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې د ټولګي په مخ کې ولولي . | – زده کوونکي په خپلوکتابچو کې دسیدال خان ناصر په هکله لیکنه کوي اوپه ټولګي یې اوروي . | |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي :<br>د سیدال خان ناصر له درس څخه مو څه زده کړل؟<br>ــ سیدال خان ناصر له میرویس خان هوتک سره څنګه ملګری شو؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځواب ورکوي . | |
| سیدال خان ناصر له ملي مبارزو نورې کومې کارنامې درلودې؟<br>ــ سیدال خان ناصرڅوک دی؟<br>ــ ولې له کندهار څخه سیدال خان ناصر وایستل شو؟ | زده کوونکي پوښتنوته ځواب و رکوي . | |
| ــ ښوونکی دلوست په لنډیز خبرې کوي او بیا یې د نوي لوست ارزونه وکړي .<br>که وخت و،کولای شي چې ورته فعالیتونه هم اجراء کړي . | – زده کوونکي دلوست لنډیزته غوږ نیسي . | |
| ــ په زده کوونکو دې په متن کې د جمعې لس کلمې پیداکړي، هغه دې په مفردو کلمو واړوي او په کتابچو کې دې جملې ترې جوړې کړي . | زده کوونکي دښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت کوي . | |

## اضافي معلوما ت

سیدال خان ناصر د ابدال خان با ړيزي ناصر زوی د پکتیا ولایت د وازې خوا د ډیله نوې سیمې اوسېدونکی، ملي شاعر، هېواد پال، مخکښ نامتو سرتیر خدمتګار، د هوتکیانو په دوره کې د میرویس خان هوتک، د ملي غورځنګ مشهور مشر و. د سلطان ملخي توخي په ملګرتیا یې له دښمن سره په هره جګړه کې نه هېرېدونکي برخه اخیستې وه، کله چې میرویس خان هوتک د صفویانو له ښکېلاک څخه د خلاصون لپاره ملا وتړله . په ۱۹۱۹ هـــ . ق . کال د سیدال خان ناصر په ملګرتیا بریالی شو، په کندهار کې یې د افغانانو خپلواک حکومت جوړ کړ.

کله چې میرویس خان هوتک په ۱۳۳۷ هـــ . ق . کال کې مړ شو، له ده څخه وروسته یې زوی شاه محمود هوتک واکمن شو.کوم وخت چې شاه محمود هوتک مړ شو ،پرځای یې شاه اشرف واکمن شو، سیدال خان د ده په دوره کې سرلښکر شو چې له ترکانو او روسانو سره یې سختې جګړې وکړې .

کله چې په۱۱۴۲ هـــ . ق . کال کې شاه اشرف په ایران کې ووژل شو، سیدال خان ناصر په ۱۱۴۲ هـــ . ق . کال کې کندهار ته لاړ ،د شاه حسین هوتک په دربار کې سرلښکر شو. هغه وخت چې نادر افشار اول ځل په تهران بیا په کندهار کې جنګ پیل کړ، سیدال خان ناصر د نادر افشار سره اووه، اته ځله سختې جګړې وکړې، خو په ۱۱۵۰ هـــ . ق . کال کې نادر افشار کندهار ونیو، سیدال خان ناصر د شاه حسین له زوی سره د کلات په کلاکې تر دوو میاشتو پورې له کلابندۍ څخه وروسته د نادر افشار د پوځونو په لاس ژوندی ونیول شول، نو نادر افشار حکم وکړچې سترګې یې وکاږئ، همدا وچې د هوتکیانو مشهورې کورنۍ ختیځو او سهیلي سیمو ته لاړې او سیدال خان ناصر د کابل ولایت شکردرې نومې ځای ته کډه لاړ، له څه وخت څخه وروسته مړ شو چې قبر یې اوس د شکر درې په سیاسنګ نومي هدېرې کې دی .

دا ده د سیدال خان ناصر د پښتو ژبې شعر نمونه :

### بدله

یار ما له هسې ګران سو

راتېر تر ټول جهان سو

نور نه وینم په سترګو

جهان ټول راته جانان سو

❋ ❋ ❋

دوې زلفې دې اوږدې کړې

پرمخ دې راخپرې کړې

سرې اشرېۍ دې په تندي باندې سپرې کړې

ګرځې په باغ کې په ګلونو کې نخرې کړې

په اور دې وسوم یاره!

راته اور تازه بوستان سو

❋ ❋ ❋

مین چې اشنایي کا

شپه ورځ به ګریاني کا

شهۍ ده ستمګاره خوشحال زړونه به زخمي کا

لینده لرې د ورځیو د باڼو غشي کاري کا

پرهار مې ګوره خلقه!

د دلبر د تیر نښان سو

❋ ❋ ❋

مین په لویو غروځي

سر تور په نیمو شپو ځي

ووځي له وطنه، وطن پرېږدي پر چولو ځي

فریادو، نارې وکا، نارو په غلبلو ځي

وصال یې نصیب نه سو

ګوره زړه ډک په ارمان سو

نارې وهم عالمه!

د شپې تر صبحدمه

ناتوانه د بېلتون یم یوه ګړۍ نه لرم دمه

بیتا مې نفس خېژي راځه زما د زړه همدمه

نظر پر ما غریب کړه

چې تاخون مې ستا په ځان سو

❋ ❋ ❋

شبنم پر ګلو ښکاري

زما اوښکې دارې دارې

خوناب ځي ستا له غمه زما په مخکې لارې لارې

تمامه شپه کم تېره په ژړا په نارې نارې

ښکاره سوه چې مجنون یم

لېونتوب مې اوس عیان سو

❋ ❋ ❋

بوستان ښکلې زېبا دی

رنګین په اوښکو زما دی

د زړه پرهار ګلګون دی چې بلبل په تماشا دی

په مینه مې زړه وچاودی ته وایې په خندا دی

نتلی د بېلتون یم

زه ((سیدال)) دا مې بیان سو

# درویشتم لوست

## د تدریس وخت :درې درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د ولسي ادب ډولونه | |
| ۲- د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | _ د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولی شي چې:<br>_ لوست په سمه توگه او سم تلفظ سره ولوستلی او جملې يې په سمه توگـــه وليکلی شي،<br>_ ولسي ادب وپېژني چې څه ته وايي او په څه ډول رامنځ ته کېږي،<br>_ د ولسي ادب او د ادب د نورو ډولونو ترمنځ توپير وکولی شي،<br>_ په ټولنه کې د ولسي ادب د ارزښت په هکله گروهمن (معتقد) شي . | |
| ۳- د تدريس لارې | لوستل، ليکل، ويل، ډله ييز کار | |
| ۴- د تدريس لارې او مرستندويه توکي | تخته، تباشير، کتاب، کتابچه، د امکان په صورت کې د ولسي ادب څخه بېلگې | |
| ۵- د ارزونې لارې او وسيلې | شفاهي، تحريري، عملي، د ښوونکي د يادښت کتابچه | |
| ٦- په ټولگي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه | سلام، روغبړ، د ټولگي تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقيقې |
| ۷- د انگېزې رامنځ ته کول | ښاغلی ښوونکی د لوست له پيل څخه مخکې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو کوي او له هغو څخه د نوي لوست په هکله لاندې او هغو ته ورته انگېزه يي پوښتنې کوي .<br>_ تاسې په خپل کور کلي او ولس کې داسې څوک پېژنئ چې ليک لوست نشي کولی او شعرونه وايي؟<br>داسې څوک درته معلوم دی چې په خبرو کې متلونه يا لنډۍ، کيسې او مثالونه وايي؟<br>له تاسو څخه کوم يو څو متلونه يا لنډۍ ټولگيوالو ته ويلی شي؟ | ۴ دقيقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک پر تخته ولیکي او د نوي لوست متن یو ځل په لوړ، مناسب اواز او سم تلفظ سره ولولي او زده کوونکي دې سم تلفظ ته ځیر کړي .<br>ــ ښوونکی دې د لوست نوي لغتونه پر تخته ولیکي.<br>زده کونکو ته دې لارښوونه وشي چې لوست په چوپتیا سره ولولي، په تخته باندې لیکل شوي لغتونه خپلو کتابچو ته نقل کړي او په مناسبو جملو کې یې وکاروي .<br>ــ څو تنه زده کوونکي دې وهڅول شي چې په وار سره د لوست مفهوم د ټولګي په مخ کې ووایي.<br><br>ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې د منظومو ولسي ادبیاتو او بله ډله دې د نثري ولسي ادبیاتو نومونه لست کړي، بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو تن د ټولګي مخې ته راوغوښتل شي او خپل لست دې نورو ټولګیوالو ته ووایي: په لوستلو کې دې کم جرئته زده کوونکو ته ډېره ونډه ورکړل شي.<br>ــ زده کوونکو ته دې لارښوونه وشي چې د لوست د څلورم فعالیت نیمګړي جملې لومړی په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره د متن له مخې ډک کړي .<br>ــ زده کوونکو ته دې لارښوونه وشي چې د لوست متن په غور سره ولولي، صفتونه دې په کې په نښه او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي، بیا دې هر یو خپل لیکلي صفتونه په وار سره په لوړ او مناسب اواز سره ولولي، که تېروتنې یې کړې وي ښوونکی دې ورته اصلاح کړي .<br>ــ ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي.<br>ــ زده کوونکو ته دې د پوښتنو کولو وخت ورکړ شي.<br>ــ د څو پوښتنو په کولو سره دې له زده کوونکو څخه د زده کړې ارزونه وکړی شي.<br>ــ د لوست په پای کې کورنۍ دنده دې زده کوونکو ته ورکړل شي چې په بل درسي ساعت کې یې له ځانه سره راوړي . | ــ زده کوونکي دې ښوونکي ته له درناوي کولو وروسته تختې ته او د نوي او زاړه لوست ترمنځ اړیکو ته متوجه شي. زده کوونکي دې کتابونه خلاص کړي او د ښوونکي له خوا د نوي لوست د متن سم تلفظ ته دې ځیر شي.<br>ــ زده کوونکي دې نوي لغتونه له معنا سره په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې په مناسبو جملو کې وکاروي او نوی لوست دې په چوپتیا سره یو، یو ځل ولولي.<br><br>ــ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي په اجازه د لوست مفهوم د ټولګي په مخ کې ووایي.<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم ډله ییز کار سرته ورسوي، ټول زده کوونکي دې په ډله ییز کار کې فعاله ونډه واخلي.<br><br>ــ زده کونکي دې له لارښوونې سره سم نیمګړې جملې خپلو کتابچو ته نقل کړي، بیا دې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي، په کتاب کې دې نه ډکوي .<br><br>ــ زده کوونکي دې لومړی صفت د کلمو په هکله ځانونه وپوهوي چې څه ته وایي، بیا دې د لوست له متن څخه صفتونه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي .<br>ــ زده کوونکي دې د لوست لنډیز ته غوږ ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې د لوست د ستونزمنو برخو په هکله له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي .<br>ــ زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ــ زده کوونکي دې د لوست په پای کې ورکړل شوې کورنۍ دنده یاداشت کړي . | ۳۵ دقیقې |
| د متن د ستونزمنو برخو په اړه معلومات | | |

| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | |
| --- | --- |

## اضافي معلومات

د ادب یا ادبیاتو په یوې پېژندنه کې لولو چې: ((د یوې ژبې ټول لیکلي (تحریري) او نالیکلي (شفاهي) منظوم او منثور هنري اثار ادبیات ګڼل کېږي .))

همدې پېژندنې ته په پاملرنې ولسي، عامیانه یا فولکلوري ادبیات د هر ملت او اولس په ادبي تاریخ کې ارزښتمنه ونډه لري او د هغو له یادونې پرته د یوې ژبې د ادبیاتو مطالعه نیمګړې برېښي، نو د مخه تر دې چې د ولسي ادبیاتو پـــه ډولونـــو او ځانګړنه څه ووایود (فولکلور) د کلمې په لغوي او اصطلاحي پېژندنه چې په نړیواله ســـطحه د دغـــه ډول ادبیـــاتو لپـــاره استعمالېږي د خپل بحث لړۍ پیل کوو.

لغوي او اصطلاحي پېژندنه :

فولکلور فرانسوي کلمه ده، لغوي معنا یې دخلکو فرهنګونه،د خلکو ادبیات، ولسي پوهه او زده کړه را اخیستې ده او پـــه اصطلاح کې د کلتور هغه څانګه ده چې د انساني مشخصو، ډلو، عنعنې، دودونه، نکلونه او انساني ارزښـــتونه، انګېـــزې، شګومونه، اعتقادات او داسې نور په کې شامل دي .

فولکلور د محتوا له نظره درې برخې لري : ۱ــ شفاهي فولکور ۲ــ غیر شفاهي فولکور ۳ــ نیم شفاهي فولکلـــور. پـــه شفاهي فولکور کې محاورې، متلونه، سندرې، چستانونه، فکاهیات، (ټوکې ټکالې) دودونه او ولسي قوانین او نور شامل دي .

په غیر شفاهي فولکور کې سیمه ییز هنرونه، موسیقي، سیمه ییز خواړه او سیمه ییز ادب او په نیم شـــفاهي فولکـــور کـــې خرافاتي عقیدې، سیمه ییزې لوبې، نڅاوې او نور راځي .

د فولکلور اصطلاح له دوو کلمو څخه جوړه ده. (فولک (folk) وګړي یا خلک او لور (lore) زده کړې ته وایي چې له دواړو څخه اولسي پوهه، د خلکو زده کړه یا د خلکو ادبیات جوړېږي . دا کلمه د لومړي ځل لپاره په ۱۸۴۶ م. کال انګلیسي پوه تامس استعمال کړه.

ځینو فولکلور څېړونکو د فولکلور لپاره پنځه ځانګړنې ښودلې دي :

۱ــ په شفاهي توګه موجود وي، ۲ــ په عنعنوي او دودیزه توګه موجود وي، ۳ــ منظومه یا منثوره بڼه لري. ۴ــ جوړونکي یا رامنځته کوونکي یې معمولاً معلوم نه وي، ۵ــ د کلتور د جزیه توګه په هر کلتور کې شته .

اوس چې مو(فولکلور) په لغوي او اصطلاحي لحاظ وپېژند، د بحث اصلي موضوع ته راځو په ولسي یا عامیانه (فولکلوري) ادبیاتو بحث کوو:

لکه چې د مخه مو یادونه وکړه ولسي ادبیات د هر ولس، ټولنې او ملت په ادبي تاریخ کې ارزښتمنه ونډه لري او د هغې له یادونې او ورته له پاملرنې پرته د هغه ولس او خلکو ادبي تاریخ نیمګړی ګڼل کېږي .

ولسي ادبیات معمولاً شفاهي بڼه لري او په هغو ټولنو او ولسونو کې زیات پیاوړي دی چې د لیک لوست (سواد) خپرېدنه په کې ډېره نه وي عامه شوي او وګړي یې له دغه نعمت څخه بې برخې وي .

زمونږ هېواد او ټولنه هم د ځانګړو سیاسي، ټولنیزو، اقتصادي، فرهنګي او جغرافیوي عواملو له امله د دغـــسې ټولنـــو او ولسونو د کتار په سر کې راځي، نو ځکه په کې د لیکلو ادبیاتو په پرتله د دغه ډول ادبیاتو پانګه ډېره ده.

زمونږ زیاترو وګړو د پیړیو په پوړیو او اوږده تاریخي بهیر کې خپلې هیلې، ارمانونه، غوښتنې، خوښۍ، غمونه، رنځونه، مینې او لنډه دا چې د ټولنیز ژوند ټول کړه وړه په دغه ډول ادبیاتو کې منعکس کړي او په شفاهي توګه یې له یو نسل څخه بل ته لېږدولي دي . د لېږدونې په دغه بهیر کې د دغو ادبیاتو زیاته برخه هیره شوې او و رکه شوې ده او په بلـــه وینـــا: ډېـــرو

راویانو په له منځه تللو سره وخت په وخت ایجاد شوي ادبیات هم له منځه تللي دي . له همدې امله مونږ د دغو ادبیـــاتو ډېرې لرغونې ببلګې په لاس کې نه لرو، خو بیا هم هغه ډېره لږه برخه چې پاتې ده. د هغو ښېلا ښېلو انواعو او ډولونو ته پــه کتنې مونږ په ډاډ او باور سره دا ویلای شو چې : زمونږ عامو ولسي وګړو که لیک لوست نشو کولای او د سواد له نعمت څخه بې برخي وو، خو پیاوړی هنري ذوق او احساس یې درلوده چې هغه یې د دغو ادبیاتو په ښېلا ښېلو کالبونو کې ځــای کړي او په ډېر په زړه پورې ښه یې بیان کړي دي .

د ولسي ادبیاتو وېش او ډلبندي :
ولسي ادبیات پر دوو برخو وېشل کېږي :
الف: منظوم ولسي ادبیات.
ب: منثور یا نثري ولسي ادبیات.
منظوم ولسي ادبیات په عامه توګه دا لاندې ډولونه لري :
لومړی : عامې ولسي سندرې یا شعرونه
دویم خاصې ولسي سندرې
لومړی: عامې ولسي سندرې یا شعرونه :
عام ولسي شعرونه هغه دي چې ویناوال یا شاعر یې معلوم نه وي ، لکه : ۱_ د میندو سندرې چې خپلو ماشومانو تــه یــې وایي. ۲_ د ماشومانو سندرې چې د لوبو په مهال یې په خپل منځ کې د مشاعرې په ښه وایي. ۳_ منظوم چستانونه . ۴_ د اتڼ نارې . ۵_ سروکي . ٦_ لنډۍ . ۷_ د نکلونو نارې . ۸_ کاکړۍ غاړې . ۹_ تاریخي نارې (چې د پښتوادب مهمې برخې دي) ۱۰_ منظوم فالونه . ۱۱_ منظوم متلونه . ۱۲_ د ښځو ځینې سندرې چې په ښېلا ښېلو مراسمو کې ویل کېږي او داسې نور.

دویم : خاصې ولسي سندرې یا شعرونه
خاص ولسي شعرونه یا سندرې هغه دي چې وینا وال یاشاعران یې معلوم او د ولس پېژندل شوي خلک دي . دا لانــدې ډولونه لري :
۱_ رباعي (مقام). ۲_ غزل . ۳_ چاربیته. ۴_ لوبه . ۵_ بګټۍ (دا ورروستی درې یوازې په پښتو ولسي ادب پــورې اړه لري) ٦_ داستانونه او نور.
د یادونې وړ ده چې د ولسي منظوم ادب پورتني ډولونه یوازې نالوستو او بې سواد وشاعرانو رامنځ ته کړي . زمونږ ډېــرو مشهورو شاعرانو هم په ولسي اوزانو او کالبونو شعرونه ویلي دي .

ب : نثري (منثور) ولسي ادبیات :
ولسي نثرونه هغه اوږدې او لنډې خوږې او پخې ویناوې دي چې د ولس په زړه کې رامنځ ته شوي .ویناوال یا اصلي رامنځ ته کوونکي یې نه دي معلوم او د ټول ولس ګډ مال دی، خوله په خوله او سینه په سینه له یو نسل څخه بل ته نقل شوي دي . دا لاندې ډولونه لري :
۱_ ولسي نکلونه او حکایتونه . ۲_ وړې کیسې . ۳_ متلونه . ۴_ اصطلاحات او محاورې . ۵_ چستانونه . ٦_ تکیــه کلامونه . ۷_ رمزونه او کنایې .۸_ دعاوې او ښېراوې . ۹_ القاب او صفتونه . ۱۰_ سترې مه شې . ۱۱_ ټوکې ټکالې

(فکاهیات) ۱۲_ روایات . ۱۳_ د ماشومانو لپاره کیسې او نکلونه (چې زیاتره اخلاقي انتباهي بنه لري .)

## د ولسي ادبیاتو ځانګړنې:

۱_ ولسي منظوم ادب د عربي عروضو او اوزانو تابع نه دی، خپل ملي ولسي وزنونه لري، په هجاء او سیلاب کې د تقطیع وړ دی .

۲_ ولسي ادبیات دموضوع په لحاظ د ولسي او کلیوالي ټولنیزو، اقتصادي او کلتوري اړیکو څرګندوونکي دي، کلیوال چاپیریال او د خلکو ژوند په کې منعکس کېږي .

۳_ ژبه یې ساده، سوچه او د خلکو یا ولس له ورځنۍ محاورې سره برابره ده .

۴_ ډېره مبالغه او له حقیقته لرې خبرې په کې نه لېدل کېږي .

۵_ د پردو ژبو اغېزه په دې ادبیاتو کې کمه او په نشت شمېر ده .

٦_ لکه څنګه چې د دغو ادبیاتو زیاته برخه د نالوستو او بې سوادو وګړو د ذهن او فکر محصول ده او رامنځته کوونکي یې په ولس کې اوسېږي ،نود ولس د ټولو مسلطو کلتوري او ټولنیزو ارزښتونو او راوابطو تابع دی .

۷_ ادبي لفظي او معنوي صنایع، تشبیهات او استعارات په کې له عقل او پوهې نه وتلي او غیر طبیعي نه دي .

۸_ دا ادبیات داجتماعي ارزښتونو په لرلو سربېره له لوړو هنري ارزښتونو څخه هم برخمن دي چې زموږ د ولـــس د لـــوړ هنري او ادبي ذوق، ښه څرګندويي او نماینده ګي کولی شي .

۹_ په دې ادبیاتو کې د پېښنو بهیر او د ژوند څېرې کټ مټ انعکاس مومي.

۱۰_ په اولسي ادبیاتو کې ښکلا، اسانتیاو رښتیا یا په بله ژبه ښکلي والی، اسا نوالی او رښتیا والی په ښه بڼه ځان ښـــکاره کوي .

**ماخذ**: د لیکوالۍ فن، لیکوال: سید محی الدین هاشمي، دوهم چاپ د خپرېدو نېټه، ۱۳۸۳ هــ . ش. کال.

# څلرویشتم لوست

## د تدریس وخت : درې درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | دا کلی مه ورانوئ (ازاد شعر) | |
| ۲– دزده کړې پوهنیزې ،مهارتي اوذهنیتي موخې | زده کوونکي د شعر د څرنګوالي اوشکل په هکله معلومات پیدا کړي،<br>– زده کوونکي دشعر په مفهوم خبرې وکړی شي،<br>– زده کوونکي دشاعر په هکله پوره معلومات ترلاسه کړي،<br>– زده کوونکي له نویوکلمو سره اشنایي پیدا کړي . | |
| ۳– د تدریس لارې چارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه. | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | کتاب، تخته ،تباشیر ،مجلې،اخبارونه او نور | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسیلې | ویناییزه ارزونه، لیکنیزه ارزونه، دیاداشت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدریس فعا لیتونه | سلام اچول، روغبړ کول، د حاضرۍ اخیستل، په بېلا بېلو بنو د کورنۍ دندې کتنه | ٦ دقیقې |
| ۷– د انګېزې رامنځته کول | تاسو ازاد شعر پېژنۍ ،ازاد شعر څه ته وايي ؟<br>– کوم شاعر پېژنۍ چې ازاد شعر یې ویلی وي ؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښوونکی دې له ا حوال پوښتنې و روسته کورنۍ دنده وګوري اودتیر لوست ارزیابي دې د څوپوښتنو په کولوسره وکړي .<br>– ښوونکی دې د لوست سرلیک په تخته ولیکي او بیا دې اړوند شعر په لوړ او مناسب اواز ولولي.<br><br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي په څو ډلو وویشي، سپارښتنې دې ورته وکړي، تر څو اړوند درس په چوپتیا یو له بل سره ولولي او ښوونکی دې څارنه وکړي.<br><br>ــ ښوونکی دې څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د یاد شوي شعرد مفهوم په هکله معلومات ورکړي.<br>ــ ښوونکی دې په څو زده کوونکود اړوند درس لغتونه په تخته ولیکي، معنا دې کړي .نورزده کوونکي دې په کتابچوکې په جملوکې و کا روي اوبیا دې څوکسه د ټولګي په مخ کې ولولي. | ــ زد ه کوونکي دې له احوال پوښتنې وروسته کورنۍ دنده ښوونکي ته وښیي اوپوښتنوته دې ځواب ورکړي .<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي درس ته غوږ ونیسي.<br><br>ــزده کوو نکي په چوپتیا سره لوست لولي .<br><br>ــ زده کوونکي دې دشعر په اړه خبرې وکړي او مفهوم دې څر ګند کړي .<br><br>ــ نورزده کوونکي دې په خپلوکتابچوکې په جملوکې وکاروي . | ۳۵ دقیقې |

## اضافي معلومات

د شعر د هر اړخيزو ډولونود پېژندلو او څرنګوالي په هکله څېړني راښيي چې شعر ډېر ډولونه لري چې ځينې يې دا دي:
۱ــ ښوونيز او روزنيز شعرونه . ۲ــ اخلاقي شعرونه. ۳ــ رزمي يا جنګي شعرونه. ۴ــ بزمي شعرونه.
۵ــ عشقي شعرونه. ٦ــ مذهبي شعرونه. ۷ــ علمي شعرونه. ۸ــ ادبي شعرونه. ۹ــ ازاد ولسي شعرونه.
۱۰ــ حماسي شعرونه. ۱۱ــ غميز شعرونه. ۱۲ــ قصيده يي شعرونه. ۱۳ــ لنډ شعرونه. ۱۴ــ اوږده شعرونه. ۱۵ــ يو بيتي شعرونه. ۱٦ــدوه بيتي شعرونه. ۱۷ــ څلوربيتي شعرونه. ۱۹ــ پنځه بيتي شعرونه. ۲۰ــ شپږ بيتي شعرونه. ۲۱ــ اووه بيتي شعرونه. ۲۲ــ اته بيتي شعرونه. ۲۳ــ لس بيتي شعرونه

لغتونه

آرين : له آر او ين څخه مرکبه کلمه ده د اصيل، نجيب او بزګر معنا لري.

ټاټوبی : د اوسېدو ځای

جونګړه : خونه

زېرمه : ذخيره

پاڅون : قيام

يون : عزم، اراده، نيت

اوښتون : بدلون

بولۍ : قومانده

سباوون :سهار

په جملو کې استعمال:

۱ــ د آرين ټاټوبی افغانستان دی .

۲ــ زېرمه د ذخېرې دوهم نوم دی .

۳ــ سوله ييز پاڅون برياليتوب دی.

۴ــ يون مې کړی چې سبا پوهنتون ته لاړ شم.

۵ــ ښوونيز، روزنيز، کرنيز، فرهنګي، اقتصادي اوښتون ته بدلون وايي.

٦ــ بولۍ په پښتو ژبه کې قوماندې ته وايي .

۷ــ بولندوی قوماندان ته وايي .

۸ــ سباوون بشپړ سهار ته ويل کېږي .

۷ــ بولندوی قوماندان ته وايي .

۸ــ سباوون بشپړ سهار ته ويل کېږي .

## پنځه ویشتم لوست

### د تدریس وخت ۳ درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | مایننونه _ غمونه | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | – د مایننونو پېژندل او د مایننونو د سیمو پېژندل،<br>– د متن لوستل او لیکل،<br>– له مایننونو څخه ځان ساتل،<br>– د مایننونو د خطرونو په هکله نورو خلکو ته د معلوماتو ورکول . | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، اورېدل، سوال او ځواب، ډله ییز کار، یوکسیزکار | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر | |
| ۵– د ارزونې لارې اووسیلې | شفاهي، عملي، څارنه، د ښوونکي یادښت کتابچه | |
| ٦– د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتل | ٦ دقیقې |
| ۷_ د انګیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې په شفاهي ډول له څو تنو زده کوونکو څخه وکړي چې زده کوونکي د لوست زده کړې ته چمتو شي.<br>- کله مو د ماین نوم اورېدلی دی؟<br>- څوک پوهیږي چې مایننونه څه زیانونه رسوي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| - د نوي لوست سرليک په تخته ليکي او بيا له زده کوونکو څخه څو انګيزه يي پوښتنې کوي ، لکه :<br>- تاسو کله د ماينونو نوم اوريدلی دی؟<br>- داسې څوک موليدلی دی چې د مين په چاودنه کې ټپي يا مړ شوی وي .<br>- اوس دې ښوونکی دنوي لوست متن په مناسب اواز سره ووايي چې زده کوونکي ورته متوجه وي .<br>- اوس دې ښوونکی زده کوونکي په چوپه خوله د متن لوستلو ته وګوماري چې مشکلي کلمې په نښه کړي .<br>- څو تنو زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې په وار سره متن ووايي ،نور زده کوونکی دې ورته متوجه وي چې د کلمو تلفظ او د جملو ترکيب ته متوجه شي.<br>- څو زده کوونکي په وار سره پورته کوي چې د مينونو په هکله په شفاهي توګه څه ووايي او نور ورته غوږ ونيسي .<br>- اوس دې ښوونکی په وار سره څو زده کوونکي پورته کړي چې د چارت له مخې د ماينونو په ډولونو خبرې وکړي او نور ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې په څو ډلو وويشي او هر ګروپ ته دې دنده ورکړي چې په خپلو کتابچو کې د ماينونو د خطر په هکله څو کرښې وليکي بله ډله دې د ماينونو د ډولونو په هکله څو کرښې وليکي او له هرې ډلې څخه دې څو تنه په وار سره خپلې ليکلې خبرې نورو ټولګيوالو ته ووايي.<br>- ښوونکی کولای شي د وخت د زياتوالی په صورت کې له زده کوونکو څخه دانشي، مهارتي، ذهنيتي او معلوماتي پوښتنې وکړي .<br>- څو زده کوونکي د هغو سيمو په هکله چې ماينونه په کې وي او څو تنه دې له هغو څخه د ځان د ساتلو په هکله خپلو ټولګيوالو ته خبرې وکړي . | - زده کوونکي احوال پوښتنه کوي، کورنۍ کار ورته ښيي او د ښوونکي پوښتنو ته ځواب ورکوي .<br>- زده کوونکي غوږ نيسي .<br>- زده کوونکي متن ته ګوري .<br>- زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي. اومشکلې کلمې په نښه کوي نور زده کوونکي غوږ نيسي او پوښتنې هم کولای شي .<br>- زده کوونکي له لارښوونو سره سم کار کوي. زده کوونکي غوږ نيسي او که اړتياوه پوښتنه کوي .<br>- زده کوونکي په چارت کې دماينونوډولونه ښيي اوخبرې پرې کوي .<br>- زده کوونکي فعاليت اجرا کوي او خپل فعاليت نورو ټولګيوالو ته وايي.<br>- زده کوونکي په خپلو ګروپونوکې فعاليت اجرا کوي او خبرو ته غوږنيسي.<br>- ز ده کوونکي دماين لرونکو سيمو په اړه خبرې کوي اود ځان ساتلو تدابير روښانه کوي. | ۳۵ دقيقې |

| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | دماینونو په ساحه کې سرې نښې دامعنا لري چې هلته لاماینونه شته اوپه سیمه کې گرځیدل خطر لري .<br>– سپینې نښې دا معنا لري چې د ماینونو خطر ورک شوی د ی ،په هغه سیمه کې گرزیدل زیان نه لري .<br>– دپرسونل ضد ماینونه د انسانانود وژلولپاره کینښودل کیږي چې په کم وزن باندې هم چوي اودوسایلو ضد ماینونه په انسانانوباندې نه الوزي په درنووسایطو. لکه :په موټرو ،تراکتورونو اوجنگي وسایطوباندې الوزي |
|---|---|
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنوته ځوابونه | د۷فعالیت دپوښتنې ځوابونه :<br>– ماینونه ددې لپاره ښخوي چې جنگي وسایط پرې وا لوزي اوانسانان پرې مړه شي .<br>– نا چاودې توکي همداسې په خاوروکې پاتي وي چې چا ښخ کړي وي یا د هغوی له یا ده وتلي و ي اویاخومړه وي یاموجود نه وي اویایې د ښخولوځایونه په نښه کړي نه وي |

## اضافي معلومات

ماینونه په دوه ډوله دي .

### ځمکني ماینونه او بحري ماینونه :

بحري ماینونه په بحرونو کې ایښودل کیږي او ځمکني ماینونه په ځمکه کې د دښمن په ضد کاروي .د ماینونو تاریخ تررومیانو پورې رسیږي . د دښمن په لاره کې به یې کندې ایستلې او په هغوی کې به یې تیره میخونه په تیږو ایښودل ، له پاسه به یې پرې خاورې اچولې . بیا وروسته همدغه رومیانو به داسې میخونه ایښودل چې څلور تیرې څوکې به یې درلودلې اوهغه به د کالتروپ په نوم یادیدل .
په دریمه میلادي پیړۍ کې په چین کې ژوگ لیانگ چې د( شو) له شاهانو څخه و ،داسې ماین یې اختراع کړ چې انفجار یې کاوه.
ځینو نورو متنونوکې راغلي چې په ۱۲۷۷ میلادي کال کې چینایانو د مغلو په مقابل کې له انفجاري ماینونو څخه استفاده وکړه . په ۱۵۷۳ میلادي کال کې د جنوب المان داگزبرگ په ښار کې د سومائیل زیمرمان په نامه یو پوځي انجینر د فلادر ماشین په نوم یو چاودیدونکی ماشین اختراع کړ چې په چاودنه کې یې ډیر قوت درلود او تر ۱۹ پیړۍ پورې ترې استفاده کیدله .
د پرسونل ضد ماین د لومړی ځل لپاره په ۱۸۶۲ م کال جوړ شو چې فیوز یې درلود. المانیانو په نړیواله لومړی جگړه کې ترې استفاده وکړه او دغه ماین هم المانیانو جوړ کړ او د دغه ماین د عصریتوب طراحي یې وکړه .
په ۱۹۹۹ م کال کې د کانادا د اوتاوا په ښار کې یوه معاهده لاسلیک شوه. چې له دې وروسته به څوک ماین نه جوړوي او نه به یې کاروي . دا معاهده ناقصه وه. ځکه چې نورو ماینونو ته پکې اشاره شوې نه وه.
د نړیوالو سازمانونو په هلوځلو د I C B L په نامه یعنې د ځمکې د ماینونو ضد د مقابلې اداره جوړه شوه چې په هلو ځلوسره یې نږدې ۱۲۰۰ غیر دولتي سازمانونو په ۶۰ هیوادونو کې د ماینونو په ایستلو او شنډولو کې کار پیل کړ، خوسره لدې د نړۍ ځینوهیوادونو په ۱۹۹۹ کال د مارچ په لومړی نیټه داوتاوامعا هده لاسلیک نه کړه . په هغې کې پریکړه وشوه چې له دې وروسته به د ماینونوتولید اوکارول منع وي .په دې تړون کې دماینونو ډولونوته اشاره شوې نه

وه .لدې امله نیمګړې شمیرل کیده، خو یوه نړیواله هڅه وه .دغه معاهده لومړی ۱۲۲هیوادونو لاسلیک کړه اووروسته یې شمیر۱۵۳ته ورسید،خوتراوسه ۴۰هیوادونولاسلیک کړي نه ده .
زموږ په هیوادکې له ۱۳۵۷کال راهیسې چې جګړه روانه ده، دجګړو بیلابیلوخواوودټانک اوپرسونل ضد ماینونه ایښي دی . غیر دولتي سازمانونه چې ملګري ملتونه یې مرستې کوي ،زموږ په هیواد کې د ماینونو په شنډولو بوخت دی .
تر اوسه پورې ۷۰۲ ډوله ماینونه پیژندل شوي دي او له ۱۹۸٦ کال راهیسې څه د پاسه ۱۱۳ میلیونه مربع متره ځمکه له ماینونو او چاودیدونکو توکو څخه پاکه شوې ده او تر اوسه پورې ۱۱ میلیونه ماینونه شنډ شوې دي . افغانستان د نړۍ له هغو هیوادونو څخه دی چې زیات ماینونه او نا چاودلي مهمات په کې شته، له دوونیمو لسیزو څخه په هیواد کې د جنګ او جګړو په بهیر کې د جګړو د دواړو خواوو له خوا ماینونه ایښودل شوي دي .اوس مهال هم موجود دي او په هره میاشت کې له ۵۰ څخه زیات کسان دماینونو په چاودلوکې وژل کیږي . ماینونه هغه مضر شیان دي چې له پلاستیک او اوسپنو څخه جوړ شوي وي . په هغو کې ناچاودلي مواد ځای په ځای شوې وي . دغه وسلې دلاس یا پښې یا نورو شیانو د فشار پواسطه چوي او په خپل شاوخوا کې انسانان او حیوانات وژني او یا یې ټپي کوي . ماینونه په بېلابېلو شکلونو جوړ یږي ،ماینونه له لومړنۍ نړیوالې جګړې څخه وروسته تر استفادې لاندې نیول شوي دي .
او زیاتره په سترګو نه لیدل کیږي او تر خاورو لاندې ښخیږي ،خو د ماینونو دساحې دپیژندلو لپاره له بیلابیلونښو څخه کار اخیستل کیږي .
په سورنګ رنګ شوې تیږې دا څرګندوي چې دغه سیمې له ماینونو ډکې دي .
په ابي رنګ رنګ شوې تیږې د ناچاودلو مهماتو شتوالی څرګندوي او په سپین رنګ رنګ شوې تیږې له مهماتو څخه د پاکو سیمو نښې بلل کیږي .
ماینونه یا ناچاودلي مهمات په داسې سیمو کې وي چې له جګړو راپاتې دي او یا خو هلته د ځارویو پوستکي او هډوکې موجود وي . یا پخوا په هغه ځای کې پوځي کمپونه موجود وي. او یا د ګولیو او د هغو د صندوقونو نښې نښانې وي.
که چیرې ماین وچاودي، امکان لری په شاوخوا کې یې نور ماینونه هم وي ځکه باید له شاوخوا سره دقت وشي.
دماین قرباني ته ډاډ ورکړئ چې روحي حالت یې خراب نشي او له خپل ځای څخه ونه خوځیږي .
د مسلکي مرستو لپاره ماین پاکانو، پولیسو، کلینیکونو او روغتونو سره په تماس کې اوسئ.
که چیرې وینې ترې بهیدلي وي . ورته وواېئ چې وینه بنده کړي .
که څوک ټپي شي یا معلول شي. باید ورسره مرسته وکړو او در ناوی ورته وشي او په ټولنه کې د کار کولو زمینه ورته برابره شي ، معلول ته ډاډ ورکړئ چې په ټولنه کې یې درناوی وشي اوخپلې تجربې نورو ته بیان کړي او خپله علمي سرمایه په کار واچوي چې له زوال سره مخامخ نشي باید له هغو سره ناوړه رفتار ونه کړو. هغوی ته د انسانانو په توګه درناوی وکړو.
موخذ :دماینونوپه باره کې معلومات له انترنیت څخه رااخیستل شوی دی .

# شپږویشتم لوست

## د تدریس وخت : ۳ ساعته

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱– د لوست موضوع | ترافیکي پېښې | |
| ۲– د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي دغه موخې زده کړي،<br>ـ له ترافیکي کړنلارو څخه به خبر شي،<br>ـ د ترافیکي پېښو د مخنیوي په باب به خپله زیار وباسي، نور به هم پوه کړي،<br>– دترافیکي نښو اواشارو په اړه معلومات ترلاسه کړي،<br>ـ د ترافیکي کړنلارود منلو په برخه کې زیاتې اسانۍ منځ ته راشي،<br>ـ په خپلواک ډول د اړوند درس د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳– د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې، ځوابونه، ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴– د تدریس وسیلې اومرستندوی توکي | درسي کتاب، اړوند توکي، توره تخته، تباشیر، تخته پاک، دترافیکي نښو چارت یاکارتونه | |
| ۵– د ارزولو لارې اووسیلې | وینابیزه، لیکنیزه، کړنه ارزول او د ښوونکي د یاددښت کتابچه | |
| ٦– دزده کړې اوتدریس فعالیتونه | روغبړ، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه اوتیرلوست ارزونه او د ښوونکي دیاداشت کتابچه | ٦ دقیقې |
| ۷– د انګیزې رامنځته کول | کله موداسې څوک لیدلې چې موټروهلی وي .؟<br>کله موپه بازار کې یوله بل سره ټکرشوی موټر لیدلی دی ؟ | ۴ دقیقې |

| | د زده کوونکو فعالیتونه | ۸ - د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۳۵ دقیقې | ـزد ه کوونکي احوال پوښننه کوي ،کورنۍ کار ښوونکي ته ښيي اوپوښتنو ته ځوابونه وايي .<br><br>ـزده کوونکي د اړوند لوست لوستلو ته غوږ نیسي.<br><br>ـ زده کوونکي غوږ ږدي .<br><br>ـ زده کوونکي غوږ ږدي .<br><br>ـزده کوونکي په چوپه خوله دلوست متن لولي .<br><br>ـزده کوونکي د متن کلمې په جملوکې کاروي .<br><br>– زده کوونکي متن لولي . | ـ پر تخته د سرلیک له لیکلو وروسته په لوړ مناسب غږ د اړوند لوست لوستنه.<br>ـ ښوونکی د لوست په لوستلو کې له زده کوونکو سره مرسته کوي .<br>ـ ښوونکی د ترافیکي پېښو په باب زده کوونکوته لازیات معلومات ورکوي .<br><br>ـځوتنه زده کوونکي پورته کوي چې د ترافیکي پیښوپه هکله په ټولګي کې خبرې وکړي .<br><br>ـپه زده کوونکوباندې په چوپه خوله د اړوند لوست لوستل د ترافیکي کړنلارو په باب د خپلو معلوماتو زیاتول .<br>په زده کوونکو د اړوند درس په متن کې د کلمو معنا او په جملو کې د هغو کارول .<br>ـد ځو تنو زده کوونکوپه واسطه د اړوند درس لوستل.<br>ـ زده کوونکو ته په ځانګړو او ډله ییزو چارو کې د پوښتنو د ځوابونو سمه لارښوونه . |
| | . | د متن د ستونزمنو برخو روښانه کو ل |
| | . | د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه |

## اضافي معلومات

ترافیکي نښې د خلکو د لار ښوونو لپاره اېښودل شوي چې موټر چلوونکي او پلي خلک د هغو د کړنلارو سره سم چلند وکړي، که چېرې ځوک د ترافیکي کړنلارو مراعات ونه کړي، نو ترافیکي پیښې منځ ته راځي، ښایي د ترافیکي پیښو مخنیوی داسې وکړو چې د موټرو چلوونکي په سرکونو کې په خپل لاس په ډېره پاملرنه چلند وکړي او پلي خلک دې په پلیو لارو تګ راتګ وکړي، نو په داسې وختونو کې به ترافیکي پیښې کمې شي.
موټر چلوونکي باید د موټر د چلولو اجازه او د چلولو ټول اسناد په لاس کې ولري چې د جریمو او پیښو سره مخامخ نه شي.

# اوویشتم لوست

## د تدریس وخت : ۳درسي ساعته

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | پټه خزانه | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:<br>_ لوست په سمه توګه ولولي او جملې یې په سمه توګه ولیکلی شي،<br>_ د پټې خزانې د کتاب په هکله لازم معلومات لاس ته راوړي،<br>_ په پښتو ادبیاتو کې د پټې خزانې په اهمیت او ارزښت وپوهېږي،<br>_ د مهمو تاریخي کتابونو لوستلو ته وهڅېږي . | |
| ۳- د تدریس لارې | لوستل، لیکل، ویل، ډله ییز کار. | |
| ۴- د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | تخته، تباشیر، کتاب، د امکان په صورت کې د پټې خزانې کتاب | |
| ۵- د ارزونې وسیلې او وسیلې | شفاهي، تحریري، د ښوونکي د یادښت کتابچه | |
| ۶- د زده کړې اوتدیس فعالیتونه | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتل. | ۶ دقیقې |
| ۷- د انګېزې رامنځ ته کول | ښاغلی ښوونکی! د لوست له پیل څخه مخکې د دې لپاره چې زده کوونکي د نوي لوست زده کړې ته چمتو او وهڅوې ،لاندې او هغوته ورته پوښتنې وکړئ .<br>_ چا د پټې خزانې کتاب کتلی او یا یې په هکله څه معلومات اورېدلي دي؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښاغلی ښوونکی دې د لوست عنوان په تخته ولیکي، د تېر او نوي لوست ترمنځ دې اړیکي رامنځ ته کړي .<br>ــ ښوونکي دې له انګېزوي پوښتنو کولو او د زده کوونکو له ځوابونو وروسته د نوي لوست متن د کتاب له مخې په لوړ اواز ولولي، زده کوونکي دې اورېدلو ته تشویق کړي .<br>ــ زده کوونکي دې ته وهڅول شي چې هغه لغتونه چې تر لاندې یې کرښې ایستلې شوي دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ــ ښوونکی دې د دویم فعالیت لغتونه په تخته ولیکي، زده کوونکو ته دې ووایي چې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا یې په مناسبو جملو کې وکاروي . له کارولو وروسته دې څو تنه خپلې جملې په وار سره د ټولګي په مخ کې په لوړ او مناسب اواز سره ووایي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي .<br>ــ ښوونکی دې د فعالیتونو په برخه کې راغلې پوښتنې له څو تنو هغو زده کوونکو څخه وکړي چې تر اوسه یې په جلا توګه په فعالیت کې برخه نه ده اخیستې، په وار سره دې ځواب ووایي.<br>ــ څو تنو زده کوونکو ته دې لارښوونه وشي چې په پټه خزانه کې د راغلو شاعرانو نمونه واخلي او که وتوانېږي ،د هغوی د لیکلو اثارو نمونه دې هم واخلي . ښوونکی دې ورسره د اړتیا په صورت کې لازمه مرسته وکړي .<br>ــ زده کوونکي دې په څو مناسبو ګروپونو ووېشل شي او په خپلو ګروپونو کې دې د پټې خزانې د اهمیت او ارزښت په هکله سره مشوره وکړي، خپلې ګډې نظریې دې د کاغذ په مخ ولیکي او بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو، یو تن د ټولګي مخې ته راشي او خپلې جملې دې ولولي.<br>ــ ښوونکی دې د لوست لنډیز زده کوونکو ته ووایي.<br>ــ د څو پوښتنو په کولو سره دې د لوست د زده کړې ارزونه وکړي .<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته په کتاب کې د کورنۍ دندې د سرته رسولو په هکله لازمه لارښوونه وکړې. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي درناوي وکړي، تختې ته دې متوجه شي او غوږ دې ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنو ته په وار سره ځواب ووایي او د ښوونکي له خوا د لوست د متن لوستلو ته دې غوږ ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې ورکړل شوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي .<br>ــ زده کوونکي دې په تخته باندې لیکل شوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي، په مناسبو جملو کې دې وکاروي او بیا دې څو تنه په وار سره د ښوونکي په اجازه د ټولګي مخې ته راشي او خپلې جملې دې ولولي.<br>ــ یوازې هغه زده کوونکي چې ښوونکي ورڅخه پوښتنه کوي په وار سره دې ځوابونه ووایي .<br>ــ هغه زده کوونکي چې د ښوونکي له خوا ورته سپارښتنه کېږي په پټه خزانه کې د راغلو شاعرانو نمونه دې په وار سره واخلي. که وکولای شي د اثارو نمونه دې هم واخلي.<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم ډله ییز کار سرته ورسوي .<br>ــ زده کوونکي دې د لوست د لنډیز تشریح ته غوږ ونیسي.<br>ــ زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي د پوښتنو په ځوابونو کې فعاله ونډه واخلي.<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده سرته ورسوي . | ۳۵ دقیقې |

| د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول | |
|---|---|
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | |

## اضافي معلومات

پټه خزانه د پښتو ژبې هغه غوره او مهم کتاب دی کوم چې په کال ۱۱۴۱ _ ۱۱۴۲هـ . ق. د هغه وخت د علم خوښوونکي پاچا اعلیحضرت شاه حسین هوتک په لارښوونه د دربار تکړه لیکوال او د پښتو ژبې او ادب مینه وال محمد هوتک په لاس لیکل شوی دی.

دغه کتاپ په ۱۳۲۲ هـ . ق کال.کې د علامه پوهاند عبدالحی حبیبي لاس ته ورغی او د پښتو ټولنې له خوا چاپ شو.

په دې کتاب کې د شعر او ادب حال له ۱۰۰ څخه تر ۱۱۰۰ هـ . ق. کال پورې لیکل شوی او د ۵۰ تنو لرغونو او معاصرو پښتنو شاعرانو او ادبیانو احوال په کې راوړل شوی دی .

کتاب په دریو خزانو وېشل شوی چې په لومړۍ خزانه کې د ۲۲ تنو پخوانو شاعرانو له ۱۰۰څخه تر ۱۰۰۰ هـ . ق. پورې حال احوال او د هغوی د اشعارو بېلګې راوړل شوي دي .

په دویمه خزانه کې د ۲۱ تنو معاصرو شاعرانو حال او د اشعارو بېلګې او په دریمه خزانه کې د ٦ تنو پښتو ښځینه شاعرانو د ژوند حال او اشعارو بېلګې راوړل شوي دي .

محمد هوتک له دې کتاب څخه پرته دوه نور کتابونه : خلاصة الطب او خلاصة الفصاحت هم لیکلي دي .

د دې کتاب تر پیدا کېدو مخکې د پښتو ژبې د لرغونې زمانې د لیکلو اسنادو او مدارکو په باب هېڅ باوري معلومات نه وو، خو محمد هوتک له ۱۰۰ هـ . ق. کال را په دېخوا یعنې د امیر کروړ څخه نیولې بیا د خپل عصر تر وخته د ډېرو پښتنو لیکوالو او شاعرانو احوال، د هغوی د شعر او شاعرۍ بېلګې او ډېرو لیکل شوو ادبي او تاریخي کتابونو نومونه تر موږه پورې راورسول او که خدایﷻ وکړي نور داسې کتابونه او لیکلي اسناد به پیدا شي چې تر ۱۰۰ هـ . ق . کال پخوا موږ ته د پښتو ژبې د ادب او شعر او شاعرۍ په هکله معلومات راکړي .په دې کتاب باندې علامه حبیبي یوه با ارزښته مقدمه لیکلې او د کتاب په پای کې یې ورباندې تعلیقات هم لیکلي دي.

# اته ویشتم لوست

## د تدریس وخت: درسي ۳ ساعته

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | نشه ستره بدمرغي ده | |
| ۲- د زده کړې پوهنیزې،مهارتي او ذهني موخې | ـ زده کوونکي د نشه یي موادو په باب هر اړخیز معلومات ترلاسه کړي،<br>ـ زده کوونکي د نشه یي موادو په ضرر وپوهېږي،<br>ـ زده کوونکي د متن لوستل، لیکل، زده کړي،<br>ـ زده کوونکي د لغتونو په معنا ځانونه پوه او بیا د هغو په جملو کې کارول زده کړي،<br>ـ زده کوونکي د خبرو اترو تمرین وکړي،<br>ـ زده کوونکي د ډېرو زده کړو لپاره وهڅول شي . | |
| ۳- د تدریس لارې چارې | لوستل، لیکل، پوښتنې اوځوابونه، د ښوونکي د یاداشت کتابچه | |
| ۴- د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، مرستندوی کتابونه، مجلې، اخبارونه، اړوند چارتونه | |
| ۵- د ارزونې لارې او وسیلې | ویناییزه، لیکنیزه ارزونه، سوالونه، ځوابونه<br>. | |
| ۶- د دزده کړې او تدریس فعالیتونه | . سلام اچول، روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د زاړه او نوي درس د اړیکو ټینګول، دکورنۍ دندې کتل | ۶ دقیقې |
| ۷ -د انګېزې رامنځته کول | تاسو د نشه یي موادو په باب د کومو ضررونو په باب معلومات لرئ؟ | ۴ دقیقې |

| ۸ - د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|
| ښوونکی دې له احوال پوښتنې وروسته کورنۍ دنده وګوري اودتیر لوست په هکله دې دارزونې پوښتنې وکړي .<br>ښوونکی دې د اړوند لوست متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.<br>ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي چې یوتن ورته لوست ولولي اونور ورته غوږ ونیسي اودرس د یوه بل په مرستو زده کړي .<br>– ښوونکی دې درې تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د نشه يي موادو د ضررونو په هکله خبرې وکړي .<br>– ښوونکی د نشه يي موادو د زیانونو په هکله کورنۍ دنده ورکوي. | ــ زد ه کوونکي هم احوال پوښتنه کوي اوکورنۍ دنده ور ته راوړي اوپوښتنوته ځواب ورکوي .<br>ــزده کوونکي د ښوونکي درس ته غوږنیسي.<br>ــزده کوونکي د ځان د پوهولو په هکله دځپل ملګري لوستلوته غوږ نیسي او له یوه بل څخه پوښتنې کوي .<br>ــزده کوونکي د زیاتو معلوماتو د لاسته راوړلو په هکله له خپلو ټولګیوالو او له ښوونکي څخه دنشه یي توکو دضر ر په هکله پوښتنې کوي اوارزښتمن معلومات په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>زده کوونکي دې د نشه يي موادو د زیانونو په باب یوه لنډه مقاله ولیکي. | ۳۵<br>دقیقې |
| د متن ستونزمنو برخو روښانول | | |
| د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه | | |

**اضافي معلومات.**

که د نشه يي مواد و له کارونې څخه ځان ونه ساتل شي بې شمېره ناوړه اغېزې لري چې ځینې يې دا دي:

ــ انسان د ټولنې د خلکو له پامه لوېږي .
ــ د اخلاقي کمزورۍ له کبله يې څوک نه خوښوي .
ــ په اقتصاد کې يې کمزوري پیدا کېږي .
ــ په روحي او جسمي توان کې يې ناوړه بدلون راځي .
ــ عصبي او ذهني لیاقت له لاسه ورکوي .
ــ د یاد توان يې هم کمېږي .
ــ بې وخته په خوب ویده وي . ګنګسیت يې ورځ په ورځ زیاتېږي .
ــ په خبرو اترو کې يې داسې بدلون راځي چې په خپلو خبرو څوک نه شي پوهولی.
ــ میتېازې هم ټاکلي ځای ته نه شي رسولی .
ــ له خلکو سره يې مینه کمېږي او د خلکوهم دې نه خوښېږي .

نشه يي توکي هغه دي چې انسان يې وڅښي، ویې خوري او یا يې بوی کړي یا يې پیچکاري کړي او یا په نورو ډولونو ترې استفاده وکړي په مرکزي اعصابو باندې ناوړه اغېزه کوي. د اعتیاد، ګنګسیت او سستی سبب کېږي.
نشه يي توکي هم په طبیعي توګه پیدا کېږي او هم په مصنوعي او کیمیاوي توګه په لابراتوارونو کې جوړېږي، لکه :کوکایین، هیروئین او نور.

عادت: عادت دې ته وايي چې په پربښودلو یې د انسان وجود ته زيان نه رسېږي .
اعتياد: په نشه يي موادو عملي کېدل اويا روږدي کېدل هغه حالت دی چې د انسان په جسمي او رواني دوارو حالتونو کې بدلون راځي او په فزيکي برخه کې یې تخريب او زيان رامنځته کيږي . د اعتياد لاملونه په چاپيريال او شخصيت پورې ډېره اړه لري او بېلا بېل لاملونه لري.

اشور: مصر
کوکاکين: کوکاکين يو قوي نشه يي توکی دی او اعتياد رامنځته کوونکي ماده ده چې د کوکائينو په نوم د يوه بوټي له پاڼو څخه جوړېږي . د لوېديځې سيمې نيمې کري هېوادونو ډېر خلک وربانديې اخته دي .سپين رنګ لري .
کوکائين د پودرو په بڼه په پوزه کې کش کېږي او يا د پيچکاري په واسطه د بدن پوستکې لاندې لګول کېږي .کابو ۳ ګرامه کوکائين په انسان کې د اعصابو فلج رامنځته کوي . زړه يې لويږي اود وينې فشار رامنځته کېږي او دغه راز مغزي زيانونه هم رامنځته کوي.
هيروئين له ترياکو جوړېږي . دغه ماده د مورفينو له تقطير څخه لاسته راځي. د هيروئينو په نشه کې انسان ته د ستوماني او اتلوالی دروغجن حالت راځي. له مورفينو څخه په نشه کې قوت زيات وي که چېرې څوک د دوو اونيو لپاره د ورځې ٦٠ ګرامه مصرف کړي معتاد کېږي. له ۸ _ ۱۲ ساعتونو وروسته د بيا مصرف احساس کوي .
په ۱۸۹۸ م. کال کې د سپينو پوډرو په رنګ ترلاسه شول.
دغه ماده په ۱۸۷۳ کال انګليسي پوه سي . ار . رائټ C. R. Wright د سنت مري په روغتون کې کشف کـــړه او د هغه نوم يې تيتراسيل مورفين کېښود. دا ماده تر مورفين ډېره خطرناکه ده .هيروئين د پوډرو په بڼه اوپه اوبو کې د محلول په بڼه پيداکېږي، هم دوړېږي او هم تنفس کېږي، تر محلول وروسته د پيچکاری پواسطه هم کېږي . داسې معتاد کـــسان ستړيا حس کوي . يو شخص د څو ځله عملي کولو په واسطه وربانديې روږدی کېږي اوپه هغو کې د زهرو اندازه د مورفينو دوه برابره ده، خو د مورفينو په اندازه خوب راوړونکی نه ده ، د هيروئينو کارول د سږود تنفس کموالی، د اشتها کم والی او سترګو عضلاتو د پړسوب سبب کېږي .
چرس په طبيعت کې په ازاد ډول پيداکېږي . د دغه بوټي کارول لومړی په چين کې له ۲۰۰۸ ميلادي کال مخه ۷۴۰ کاله دمخه ثبت شوي دي . د چرسو بوټی له ډېرو پخوا څخه په افغانستان، هندوستان او ايران کې مشهور دي . په اوستا کې د بنګه Bannga په سانسکريت کې د Bahaga په نامه راغلي دي چې د بنګ کلمه هم له همدې کلمو څخه راوتلي ده.
بيا وروسته دغه کلمه د نړی په بېلا بېلو هېوادونو کې په بېلا بېلو نومونو ياده شوي ده. د بېلګې په توګه په جنوبي افريقا کې د Daggaپه نوم په مرکزي افريقا کې د Djema په نوم په مکسيکو کې د Grifa په نوم، په ترکيه کې د Kabak پـــه نوم او په برازيل کې د machonha په نوم په تونس کې د Takrouri په نوم او په شمالي امريکا کې د Bhang په نامه يادېږي .
چرس په عصبي مرکز باندې زياته اغېزه لري له خندا او تخيل سره ملګری وي . ورو ورو يې وجود کمزوری کېږي .
لومړی ځل په چين او بيا په هند کې پېژندل شوی دی او بيا ۵۰۰ کاله دمخه اروپا ته يووړل شو. له نن څخه ۱۰۰۳ کاله دمخه په شمالي افريقا او اسيايي هېوادونو کې وپېژندل شول .
چرسو ته ماريجوانا وايي. دغه کلمه له اسپانوي څخه اخيستل شوې ده چې د زهرو معنا لري . د چرسو په څکولو سره پـــه نورو خطرناکو نشه يي موادو د اعتياد کيدو زمينه برابرېږي . چا چې له چرسو څخه نشه پيل کړې وي د چرسو له څکولو وروسته په څکوونکي باندې نشه راځي. او په پای کې معتاد کېږي. د چرسو اغېزه له نيم ساعت څخه وروســـته تـــر دوو

ساعتونو پورې رسېږي .
د چرسو په نشه کې د سترګو رګونه له وینې ډکېږي او سترګې یې سرې ښکاري. د زړه ضربان زیاتوي او خوله یې وچېږي .کله نا کله ګیچ کېږي .
د احصایې له مخې ۶۳۰ میلونه وګړي د کال یو ځل چرس څکوي او ۸ میلیونه وګړي په منظمه توګه چرس څکـــوي . د چرسو له ۵۰_۲۵ پورې تترا هایدرو کارنابینول ماده لري چې په تنفسي جهاز اغېزه کوي او ورو ورر حافظـــه کمـــزورى کوي .لومړى د تنفسي سیستم تنظیم له منځه وړي، وروسته د زړه د ناروغانو په څېر د ناروغی احساس پیدا کوي، د زړه او سرطان په ناروغی اخته کېږي او ورو ورو جرئت له لاسه ورکوي اود پیسو د لاسته راوړلو لپاره په جرایمو لاس پورې کوي . چرسیان ډېرې خبرې کوي، خو په اخر کې خبرې اترې ترې هېرېږي له همدې کبله د درک توازن نه لري .
که په لنډ ډول د چرسو زیانونه ډلبندې کړو ویلای شو چې د چرسو په څکولو سره په معتاد شخص کې لانـــدې نـــاروغی رامنځته کېږي .
_ د تنفسي مجراوو التهاب او بندېدل .
_ د سږو غفونت او د سږي سرطان .
_ د وزن کموالی او په جینین کې زیانونه .
_ رواني او عصبي اختلالات .
_ د سترګو د کسي پراخوالی.
_ توندوالی او بې حوصله ګي.
_ مزمن برانشیت.
_ ډېرې خبرې کول او بې دلیله خندا کول .
_ د بدن دفاعي قوت له منځه تلل.
_ د هاضمې کمزوري .
_ له کار او درس سره مینه نه درلودل .
_ ډار او ویره او بې زړه توب .

**ماخذونه:**


۱_ نشه یي توکي، تنباکو تر هیروئینو پورې، د سرمحقق نعمت الله اندړ تالیف. ۱۳۸۳ کال.
۲_ تدریجي خود کشي، اکاډمیسن عبدالاحد غرنی، ۱۳۸۳ هـــ . ش . کال.
۳_ مخدره مواد: د افغانستان د علومو اکاډمي، د مقالو مجموعه، ۱۴۲۰ کال.
۴_ اګاهي از مواد مخدر، تهیه و ترتیب، شمس الدین جمالي.


# پای